# حضرت باچاخان

# ژوند او فلسفه

لیک :- ایکنات سوارن

# حضرت باچاخان

# ژوند او فلسفه




لیک :- ایکنات سوارن

ټول حقونه محفوظ ساتلي شوي

دکتاب نوم    حضرت باچاخان ژوند او فلسفه

ړومبني اشاعت    کال ۱۹۹۳ء

شمیر    یو زر (۱۰۰۰)

کاتب ۔    شمس العارفین عارف

پرنټر

چاپ کونکې اداره :    پښتو ادبي سوسائټي۔ اسلام آباد
(رجسټرډ)

دملاویدو درک ۔    ۵۷۰ - ئي - جي ایس / ۷ اسلام آباد

د محترم حبیب الله رفیع به دربار کښې
2013/9/4

# فهرست عنوانات



# انتساب

د خپلے مرحوم پلار عبدالغفور خان

په نوم

چې یو دروند پښتون، یو ځلنده

مینه ناک او رنګین بنیادم وو.











علم او زده کړه له یو بل نخه لاس ته راځي او د دې د حاصلولو هم بیلې بیلې ذرائع وی چې په کښې یوه اهمه ذریعه پر دې ارزښت لرونکې تصنیفات د استفادې حاصلولو په غرض خپلې مورنۍ ژبې ته راړول وي. چې د اسې بیا عام وکړې استفاده او کټه ترې حاصله کاندي.

په پښتو ژبه کښې که له یوې خوا نثري لیک چندانې پریمانه نهٔ دي نو له بلې خوا بیا د بهرنۍ ژبې ارزښت لرونکي تصانیف مورنۍ ژبې ته راړولو پام لرنه هم چندانې په زړهٔ پورې نه ده. نو د علم، معلومات، ودې او استفادې حاصلولو تقاضا دا چې د هرې

د ستر او درونـد باچا خان ځلانده او روښانه شخصیت نه خوله پښتنو پټ دی او نه له بهرنو البته حیف له دی د باچا خان د حق ادا ئیني او ذمه واری چې څومره په خپله په پښتنو پریوځي. نو د دی ادائنه لکه څنګه چې په کار دو هم هغسې په زړه پوری نه ده ځکه چې په کار دو او دې چې د باچاخان په هکله تصانیف په مورنۍ ژبه کښې د هر پښتون په کور کښې نه یواځې د عقیدت په توګه بلکې د استفادې حاصلولو په غرض هم پراته وای.

لکه څنګه چې تخلیقی او تحقیقی کران کار دو نه دي نو دغه راز ژباړه کول هم څه آسان کار نه دې له یوې خوا که یو پردې د امریکې او سپید ونکې ښاغلی ایکنات سوارن د ستر او درونـد باچاخان په حیث " د غره هومره د نګ انسان" سپېځلی او ځلانده شخصیت په ربښتنې اړخ کوټلې پوری کړې

د

مصنف د پېرزوینې د احترام د حق ادائېنه وکړه بلکې له بلې خوا بې له سخ باچا خان سره د خپلې مینې او عقیدت فریضه هم ترسره کړه هیله کړم چې پښتانه به د نیاغلي ایکنامت سوارن د زیار... د سخ مشر باچا خان د مبارز او ښاغلي عبدالغني خان خټک له پېرزوینې استفاده حاصله کاندي.

په درناوي

عبدالفتح پښتون

۲۳ مئي ۱۹۹۳ء



والعلموا ... طين
د سیف الدین لودین کتابتون
کتاب پر لیسي شمیره


○ ○

# یو (تاریخي) اقدام

محترم عبدالغني خان خټک صاحب زما یو ښه ملګری دی د یوې لاری څخه چې لیوني یو. زه هم د خټک صاحب په تحریک پښتون ورور ولي نومې تنظیم کښي ورګډ شوی وم. ډېره موده مو یوځایې د اسلام آباد د پښتنو په ډیره اوره ورځني "هیواد" او ورځپاڼه "وحدت" کړځولې دي. د پښتو ادبي سوبا تنهی اسلام آباد د قیام او استحکام د پاره هم مونږ یوځایې اوره کاله هلې ځلې کړې دي.

د ملګري غني خان د شخصیت په شان د هغه لیکونه هم سپیڅلي او ساده دي. هغه د پښتو او پښتنو د ودې او ترقۍ د پاره عملي او صحي هلې ځلې کوي. هم د دې مقصد د تر سره کولو د پاره هغه وخت په اردو پښتو او انګریزي

ده دا په علمي، ادبي او سياسي حلقو کښې ډېر مشهور
او معروف دي، په پښتو کښې د دې ترجمه کول په
خپله يو تاريخي اقدام دی. ژوندۍ ژبې تل پخپله
سينه کښې د نورو ژبو تورو له ځائ ورکوي هم په
دې اساس ځان ژوندۍ ساتي. پښتو هم يو ژوندۍ
ژبه ده. په خپل ماحول کښې نورو ژبو ته ځاي ورکولو
صلاحيت هم لري. هم د ترجمو سره د دوه ژبو کلمې يو
شي او چې په کومه ژبه کښې ترجمه کيږي هغه ډېره
وده مومي.

محترم خټک صاحب دا کار او زيار د قدر وړ او
ستائينې جوګه دی. زه هيله لرم چې پښتانهٔ به دا
کتاب د زړه په مينه واخلي او ژوره لوستنه به يې
وکړي. او د خپل قامي رهبر باچا خان د ژوند
او فلسفې نه به ځان خبر کړي. او نوي سياوُن نه به
ځان په علمي توګه تيار کړي او په محترم خټک
صاحب به روحاني خوشحالي پېرزو کړي. چې د هغه جذبې

زه د خټک صاحب دا اقدام تاریخي د قدر وړ
او ستائني جوګه ګڼم او د مبارکي ورته وائیم او
د هغه د خوشحاله ژوند د پاره لاس په دعا
یم

اقبال حسین افکار

۱۰، جون ۱۹۹۳ء

اسلام آباد



# مزل او منزل

د جون میاشت او د ۱۹۱۲ء کال د برصغیر دَ مسلمانانو په تاریخ کښې یو خاص مقام لري ځکه چې هم په دغه نیټه مولانا ابوالکلام آزاد دَ مسلمانانو د بیدارۍ په لړ کښې د خپلې رسالې "الهلال" اجرا کړې وه. تر دغې وخته پورې د مسلمانانو عمومي مزاج د سر سید احمد خان د فکر لاندې دَ انګریزانو په باره کښې مصالحانه وو. خو په پښتونخوا کښې حالات داسې نه وو. ځکه چې دلته څو کاله اګاهو د ترنګزو حاجي صاحب خپلې هلې ځلې شروع کړې وې او ستر لوړنیود او د جنګ آزادۍ لوئ جنګیال باچا خان دوئ سره په ۱۹۱۱ء کښې ملګري شوي وُو. دلته کښې

ل

**کول** غواړم چې د کتاب د مطالعې په وخت تاسو ته وړاندې وي. د کتاب ترجمه نګار په خپله یو عملي سړی دی. د ژبات مصروفیت او محدود و وسیلو باوجود دهٔ دَ پښتون د روښانه مستقبل شمع بله کړې ده که هرڅومره ډېرا یې تنته ده خو دې پرې کله دَ اُمید او کله دَ حوصلې تیل واچه وي. او دغې تک تور چاپېرچل روښانه کړي. بل خوا چې په چا کتاب لیکلې شوي دي هغه هم د استقامت او عمل یو غرو. هغه په خپله وائی" زهٔ په هر خدائي خدمتګار کښې یقین، عزم او عمل لیدل غواړم" دا غوښتنه نن هم د هر پښتون نه کیږي ځکه چې د باچا خان د پښتنو د ښکالې او یو والي خوب لا هغسې بې تعبیره دی.

د برصغیر په تاریخ کښې خو دهٔ ته د اوږد

را غوند کړل. اوس به دا خواږه وږه او ترمې ترمې
پښتانه کله یو موټي کیږي. دا د باچاخان ارمان
وُو او دا لا هغسي نیمګړي پروت دي. دکتاب د
مطالعي دوران کښي دي دا خبره ستاسو پیشي نظر
وي چي پښتون قام ته دي منزل ته رسیدل دي
او دوئ ته دا منزل په سر پروت دي که هرڅومره
لاره اغزنه ده یا نیمي نښانې بې تتې دي. یا کله
زمونږ د مخني ملګرو ساه. بې ساه شي. خو راځه چې
د کلکه اراده اوکړو چې دا منزل به مونږ په
ډیره مړانه او استقامت په دې اُمید کوو چې
راتلونکي وخت زمونږ ده دي. انشاءالله.

انجنیرجان نثار

---

# پس منظر او پیش منظر

بسم الله الرحمن الرحیم

لکه څنګه چې د کتاب د نوم "حضرت باچا خان ژوند او فلسفه" نه ښکاره ده دا کتاب په اصل کښې د هغه حالاتو او واقعاتو یو تاریخ دې، د کومو نه څه چې انګریزان برصغیر ته را ورسیدل او د وخت تیریدو سره سره د سوداګرانو نه حکمرانانو کښې بدل شول او بیا چې کله د برصغیر په اسنوګنو کښې د غلامۍ نه د مرګه خلاصولو احساس را پیدا شو او دې لړ کښې ئې د آزادۍ کوم تحریک شورو کړو. دې تحریک کښې د حضرت باچا خان په کردار رڼا اچول شویده. اګر چې دا تفصیلي تاریخ نه دې د تاریخ یو آوټ لائن دې، یوه خاکه ده څو دومره پراخه ده چې لوستونکي ته نه ډیر څه زده کولې شي.

د دې کتاب د لوستو نه مونږ دا نتیجه اخذ کولې شو چې حضرت باچا خان یو داسي وخت کښې د پښتنو ن

قوت کښې دَ دوئ واک اختیار او اقتدار ته د پښتو خطرو
نه نبه نخې وُو۔ موږ داګورو چې دَ حضرت باچاخان
د مشرۍ لاندې پښتون وګړي د برصغیر په آزادۍکښې
یو فیصله کن کردار ادا کوي۔

زۀ داګڼم چې ښاغلي ایکنات سوارن په رښتینۍوار
ښه په ایماندارۍ سره د برصغیر د آزادۍ په تحریک
کښې د حضرت باچاخان او دَ پښتون دَ کردار ستائنه
کړې ده۔ لکه څنګه چې د دې کتاب د مطالعې نه
موږ ته دا معلومیږي چې ښاغلي ایکنات سوارن د اعلیٰ
درجې هندو دانشور دې او د آزادۍ د تحریک او
دې تحریک کښې د شاملو کردارونو مطالعه هغه ډیره
دَ نږدې نه کړې ده او په دا وجه د هغه رائې یو سړ
لري او د احترام جوګه ده۔ دا په پښتون د ښاغلي
ایکنات سوارن یو احسان دي چې ډیر پټ اړخونه
یې را وړاندې کړي دي او بیا په تیره تیره یې دَ
باچاخان د ژوند او جد وجهد قیصې په داسې
خونده ور ډول بیان کړې ده چې په خپله

کارونو ته لاس واچوي او د پښتون د تاریخ په لړکښې
د پښتنو مشرانو په کردار او د تاریخي واقعاتو او پیښو
ته پلو پورته کړی.

اوسه پورې چې د پښتون اولس څومره هم تاریخي
پلټنه شوې ده دې کښې ډیر کردار هغه خلکو ادا کړې
دې چې د پښتون سره یې قدم په قدم دشمني کړېده
د پښتون حق یې خوړلې دې. او نن چې پښتون ـــ د
یو پلار نیکه اولاد په څپله څمکه د بې بسۍ حالت کښې
ترمې ترمې پروت دې دا د هغه خلکو د انتقامي سیاست
او کاروایو نتیجه ده.

انګریز دعوی لري چې ټوله نړۍ کښې دا زیات
مهذب قام دې. انګریز واکدار به هغه وخت هم دا
وئیل او نن هم دا وائي چې مونږ غلام السونو ته د
ژوند تیرولو چل ښودلې دې. نن وخت دا خبره ثابته
کړې ده چې څوک د چا حقونه خوري هغوی مهذبه
نه شي کیدې. ښاغلي ایکنات سوارن دا حقیقت په ګوته
کړې دې چې. انګریز د پښتون خلاف کومې وحشیانه کاروائی

کومې ورانکارۍ کړې دي دَ هغوۍ له کبله مونږ دا نه شو وَئیلې چې انګرېز کښې څه سړي خوب یا انسانیت هم نۀ دوۍ د خپل واک او اختیار او اقتدار لمن غزولو دپاره هر جرم جائز او روا اوګنړلو۔ مونږ په دې خبرۀ دیا ره کوؤ چې مونږ دَ دوۍ لمن سورۍ سوّۍ کړکا ۔ او انګرېز خپله هم دا حقیقت تسلیموي۔

د دې کتاب بل اړخ دَ دې دا پښتو ترجمه وه چې مونږ بې لولو۔ آیا ژبارن بنه ترجمه کړې وه او کنه نیمګړې وه دا دَ لیکوالو او دانشورانو کار دې چې په تول بې وتلي او دائې بوې تاثمه کړي۔ څما خپل خیال دې چې همیشه یو کارکښې د نوو بنه کیدو ګنجائش موجود وي۔ بیا غلې ژبارن هم د ترجمې دا ګران او مشکل کار محض دتامې جذبې لاندې کړې دې چې پښتون وګړې د خپل زور قوّت او توان یو جهلک اوویني او دې تر نه خپله هم څه توانائې حاصله کړي۔ او د لیکوال دا جذبه هم څما په نزد د ستائنې وړ ده چې پښتو ژبه کښې د یو معیاري او

دا به نامناسبه نه وي که په دې موقع زه دَ پښتو ژبې شاعرانو او ليکوالو او دانشورانو په حقله څه او وايم دا حقيقت کښې دَ دوئمې خبرې ګنجائش نشته چې نن پښتو ژبه په کوم مقام ولاړه ده. دا ښه مقام دې يا بد، لوړ مقام دې يا پست دا مقام دې نه شاعرانو او ليکوالو ور بخښلي دې دا د شاعرانو او ليکوالو دَ جد وجهد نتيجه ده چې نن پښتو ژبه ژوندۍ ده او دَ ودې کولو او نور پر مختګ ښه پراخه امکانات پې ځان له زېږولي دي.

دَ پښتو ژبې بدقسمتي دا ده چې دا چرته سرکاري ژبه نه ده پاتې. افغانستان کښې دې نه کال نولس سوه دوه ديرشم درې ديرشم کښې هغه وخت سرکاري سرپرستي حاصله شوه چې دَ افغانستان سرکاري او دفتري ژبه اوګرځولې شوه.

په مجموعي ډول پښتون د مودو راسې دومره دَ دباؤ لاندې پاتې شوې دې چې د خپلې ژبې نه په منظم ډول ودې ورنکړې شوه. د کال نولس سوه اوه څلويښتم نه پس کله چې پاکستان په وجود کښې راغلو. پښتو ژبه ارادتًا په دې غرض نظر انداز کړې شوه. چې دا د خلکو هيره شي او

چې وکیلان، استاذان، ډاکټران، سرکاري افسران کلرکان د کالجونو او یونیورسټو ځلمي طالب علمان او په صوبائي او مرکزي سطح دَ پاکستان په سیاست کښې بوخت سیاستدانان او د صوبائي او قومي اسمبلۍ غړي د پښتو د ییک لوست نه تر ډیره حده نابلده پاتې شول. داسې

دَ پښتو ژبې په حواله د هغوی احساسات مړه شول. کله چې د یو قام لوستي وګړي د مجبورۍ دې حالت ته راورسي دَ هغه قام پوره وجود په خطره کښې پریوځي.

داسې دَ مایوسۍ حالاتو کښې زمونږه شاعرانو او لیکوالو دَ پښتو ژبې بیرغ اوچت ساتلې. دا څه کمه کارنامه نه ده. دې شاعرانو او لیکوالو خپلې شاعرۍ کښې یواځې دَ یار زلفې نه دي ستائیلي بلکه دَ قامي غیرت د ژوندي ساتلو کار هم کړې دې. چونکه زمونږ شاعران اکثر نثر هم لیکي په دا وجه زه دا ضرورت محسوسوم چې دَ دوی پام پښتو ژبه کښې د نثر په لور راواړوم ولې چې د یوې ژبې د اوچت معیار او پست معیار تعین دَ دې ژبې د نثري پنګې په بنیاد کولې شي. ضرورت د دې خبرې دې چې

چې د نړۍ اولس ته د پښتون اصلي څېره ښکاره شي. ولې چې غير پښتون ليکوال د هميشه راسې زمونږ په باب کښې غلط فهمۍ پيدا کړې دي. او مونږ يې د يو غير معياري او وحشي قام او وحشي په حيث متعارف کوي. زه دې کتاب په حواله د ځنو ليکوالو او شاعرانو د دې خبرې سره اتفاق نه کوم چې، مونږ غير سياسي يو" پښتون شاعر او ليکوال د هيشه راسې قامي او سياسي تحريکونو کښې سرګرم پاتې شوي دي او د قام د راهنمايۍ کار يې کړې دے که ته دا موقف اختيار کړې چې مونږ غير سياسي يو نو د پښتون وګړي د راهنمايۍ کار به څوک کوي؟ آيا د يو شاعر بقول دا هغه کيفيت خو نه دے.

سه تھا جو ناخوب بتدریج وہی خوب ہوا
کہ غلامی میں بدل جاتا ہے قوموں کا ضمیر

دا خبره خو ذهن مني چې يوه ټولنه يا يو شاعر يا ادبي شخصيت د چا سياسي مشر يا سياسي ګوند طرف داره نه وي او د سياسي چارو په حقله خپل يو آزاد فکر لري ولې دا ځنګه کيدې شي چې د قام تر ټولو ستر که وره طبقه دې

جوړېږي چې د قامي چارو په حقله د پښتون وګړي پوهه زیاته کړي.

موږ ته چرې هم دا حقیقت نه دی هېرول په کار چې پښتون د غیر موافق سیاسي حالاتو له کبله ډیرو بدو حالاتو کښې ګیر دی. پښتون چې نن څومره د بې بسې حالاتو کښې ا نښتي دي داسې چرې هم نه وو. دا دَ شاعرانو لیکوالو دانشورانو او لوستې تبو فرض جوړیږي چې دَ پښتون د ښه کیدو او دې دَ دې بدو حالاتو نه دَ ایستلو فکر اُکړي.

دَ ښاغلي رحمت شاه سائل د وینا مطابق :-

ے دا وګړې په وجود څومره غني دي
خو په برخه جوارګر دې تاواني دي
تار تار پروت دې چا رانول نکړو سائله
د پښتون وطن ګړیوان د لیوني دې

د پښتون وطن ګړیوان کله د لیوني ګریوان شو؟ دَ پښتون وطن ګریوان هله ریښې ریښې شو کله چې دَ افغانستان د پښتو ګټوالانو [illegible] او شاعر [illegible] د ولسي [illegible]

دَ خپل کمزوري سیاسي او معاشي حالاتو په وجه د خپل یووالي او استحکام دفاع اُنکړې شوه ـ او د انګریزي سامراج د لاسه په کال اتلس سوه دري نوي کښي دَ پښتون د تاریخي وحدت په سینه د ډیورنډ کرښه راښکلې شوه او پښتون تمام ټوټې ټوټې کړې شو ـ نن هم پښتون په څلورو ټوټو کښي تقسیم کړې پروت دې یعنې دَ افغانستان مملکت (۲) قبائلي سیمې (۳) جنوبي پښتونخوا او شمالي پښتونخوا ـ

د انګریزانو او روسانو تر مینځه چې نولسمې او دَ شلمې صدۍ څلورمې د هاۍ پورې کوم جنګ شوې چې دَ "ګریټ ګېم" په نامه یادیږي دې دور کښې چې افغان اولس څومره بې بسه وو دَ هغې نه هم ډیر زیات بې بسه نن دې ـ نن چې کوم نامونه په یو ویشتمې صدۍ کښې په فخر او ویاړ سره د قدم کېښودلو ارادې لري پښتون نن هم مات ګوډ دې او د پښتون سیمې نه دَ درد، غم، بې بسۍ چغې اوریدې شي او د بدو حالاتو یو زړه چاوډونکې تصویر پیش کوي. د تیرو څوارلسو کلونو راسې د افغان جنګ او د بین الاقوامي

د را نسکوریدو نه پس د افغانستان د آزادۍ د پاره جنګیدونکي مجاهدین په خپلو کښې لاس په ګریوان دي. او د افغانستان په خاوره د ماشومانو، تورسرو، سپین ږیرو او ځلمو وینه بې دریغه بې ځایه بهولې شي.

د افغانستان د تباهۍ او بربادۍ اثرات د دې په نتیجه کښې د سیاسي زوال، معاشي او اقتصادي بربادتیا اثرات نیغ په نیغه د پاکستان په پښتون را پریوتي دي. او دَ افغان اولس ـ لر او بر ټول سیاسي، اقتصادي او ادبي نفسیات دَ یوې خونړۍ تباهۍ سره مخ دي. ن افغانان برباد هم دي او حیران هم ـ د افغان اُولس دَ دوباره تعمیر او دَ دوی دوباره وحدت هسه به د کوم ځایَ نه شورو کولې شي او څنګه دا کار ممکن کیدې شي. دا هغه سوالونه دي چې زمونږ نه جواب غواړي. پښتون به څو پورې تیارو کښې پروت وي؟ او دَ دهٔ ګریوان به څو پورې تسلیدلی دې؟ سوال دا دې چې څو پورې دې داسې تار تار پروت وي نو دې څه مستقبل لري؟ دې د خپل وجود دفاع کولې شي؟ د پاکستان په خاوره په یوه ځمکه د پلار نیکه اولاد پښتون په دریو ټوټو کښې

جواب غواړي چې داسې د پښتون قام د دوباره احیا په عمل کښې اجتماعي او ټولنیز شعور په کار راوستې شي ـــ او دا حقیقت نن هم او د نن نه سل کاله پس هم او د همیشه همیشه د پاره ذهن کښې ساتل په کار دي چې د یو قام احیا هله ممکن کیدې شي چې دې د خپل واک او اختیار خاوند وي او د خپلې ودې او پرمختګ په حقله د فیصلې کولو قوت او اختیار لري. خپل تهذیب، ژبې، ادب او ثقافت ته وده ورکولې شي او که یو قام داسې نه شي کولې نو هغه آزاد قام نه شي بللې.

د دې کتاب په رڼا کښې مونږ ګورو چې د نیادو هم

داسې پس منظر کښې حضرت باچا خان پښتون ته د سیاسي شعور او پوهې ورکولو د کار ابتدا وکړه. دې غیر معمولي شخصیت، د پښتون دې عظیم او تل تر تله د احترام جوګه مشر په داسې وخت کښې چې د فرنګي واکمن واک او اختیار ښه مضبوط وو د پښتنون د راویښولو سفر شورو کړو. دهٔ دا سفر د ژوند آخري لمحو پورې جاري اوساتلو.

دې کتاب کښې چې ښاغلې ایکناف سوارن د حضرت

ډېر تفصيلي جواب غواړي. دا هم کېدې شي چې موږ دې تفصيلي جواب کښې د هغه د شخصيّت سره انصاف ونکړې شو بيا هم چې کله موږ دَ هغه د سياسي جدو جهد جاج اخلو نو دا زموږ فرض جوړيږي. چې د تنقيد په شوق کښې دَ هغه ذات دَ بې ځايه تنقيد ښکار نکړو.

د پښتون قام په نزدې تاريخ کښې ډېر ځلنده ستوري پيدا شوي. دَ مثال په توګه حضرت بايزيد انصاري چې په پير روښان مشهور دې، خوشحال خان خټک، دريا خان او ايمل خان، ميرويس نيکه احمد شاه ابدالي، حاجي ترنګزئ صنوبرحسين کاکاجي، فقير ايپي، خان شهيد عبدالصّمد خان ـــ دا ټول هغه شخصيتونه دي چې وخت په وخت يې پښتون دَ خوب نه را بيدار کړې دې ـــ دا د پښتونخوا په مختلفو سيمو کښې زيږدلي دي. دا لوړ شخصيتونه دي او موږ يې ډېر په فخر سره د نړۍ د نورو قامونو د مشرانو سره مقابله کولې شو. دا دَ افسوس خبره ده چې دَ دې نوموړو او لوړو مشرانو دَ ژوند، جد و جهد او کارنامو تفصيلات اوس هم په تيارو کښې پراته دي چې ژورد لټون او تحقيق غواړي.

عبرتناکه ځکه چې دهٔ انګریز ته ماتې ورکړه. د آزادۍ په تحریک کښې د دهٔ جدوجهد او د خدائي خدمتګارو قربانو یو نوې روح واچولو او د انګریز فخر او غرور یې په خاورو کښې اولړلو.

د انګریز سره مقابله کول د دیوال سره ډغره وهل وو انګریز یو عیار، چالاک او طاقتور حکمران وو. دهٔ نه یواځې دا چې پښتون مفتوح کړې وُو بلکه د دهٔ قامي وحدت یې ټکړې ټکړې کړې وو. چې د دهٔ مارشل قوت مات کړې شي. او د خپل قوت او سیاسي چالونو په ذریعه دهٔ پښتون د هندوستان په سیاست کښې راګیر کړې وُو حالانکه حقیقت دا دې چې د پښتون زمکه د هندوستان برخه نه ده. د پښتون خاوره ځان ته جدا تشخص لري دا د هندوستان او وسطي ایشیا په مېنځ مېنځ کښې ځانته بیله خاوره ده ـــ پښتانهٔ هندوستانیان نه دي او نه په تاریخ کښې چرته هندوستانیان یاد شوي دي. د انګریز د راتلو نه اګاهو د پښتون تجارتي ترړن همیشه شمال سره پاتې شوې دې. دې لړ کښې زهٔ د علامه اقبال د یو شعر حواله ورکول ضروري

ملّت دې. که دا زړۀ خوشحاله وي ټوله ایشیا به خوشحاله وي او که دلته فساد وي نو ټوله ایشیا کښې به فساد وي.

دَ ایشیا دا زړۀ دَ افغانانو دا وطن انګریز قصاب غوڅ کړو او یو جغرافیائي وحدت ئې په بیلو بیلو ټوټو کښې تقسیم کړو. دَ انګریز دا تقسیم اوسه پورې موجود دې دَ تشویش خبره دا ده چې پښتون دا تقسیم ډیر زر په ذهني طور هم اُمنلو او دغه شان دې نور زیات کمزورې شو. ځنه داسې حقیقتونه دي چې د هغوی هیرول یا نظرانداز کول به پښتون قام ته په راتلونکو وختونو کښې ډیر زیان اُرسوي. په کار ده چې دَ پښتون راتلونکو نسلونو ته دا علم وي چې پښتون همیشه نسلي تاریخي کلتوري، لساني، جغرافیائي او اقتصادي وحدت پاتې شوې دې. دَ ډیورنډ د کرښې باوجود شینون او پاونده په دې مجبور دي چې په ژمي کښې به تر ډیره اسمٰعیل خان او بنوں راځي او په اوړي کښې به تر هلمند او مزار ځي.

څه اخلاقي یا قانوني جواز نه لري او په دا وجه پښتون دا حق لري چې خپل وحدت تر لاسه کړي.

د پښتون د تقسیم خلاف د افغانستان امیرانو څه اُنګړي شول ځکه چې یو خو هغوی کښې د انګریز سره د مقابلې کولو قوت نه وُو. او په بل لور دَ افغانستان امیرانو د خپلې حکمرانۍ په قیمت د پښتون وحدت نظر انداز کړه او دې سره سره افغانستان کښې د شخصي حکومت په وجه جمهوري شعور او پوهې ورته اُنګړې شوه او په دا وجه د افغانستان په امیرانو د پښتنو د قبضه شوې سیمو بیا تر لاسه کولو لړ کښې څه اولسي دباوَ هم نه وو. افغان حکمرانان نه یواځې دا چې په عمومي توګه غلي پاتې شول بلکه د ډیورنډ کرښې نه لاندې پښتون به یې "سګ انګلیسي" بللو او دغسې دَ خپل بې وسه رونړو سره یې نفرت پیدا کړو.

مطلب دا شو چې دَ انګریز د لاسه دَ پښتون غیر قانوني او غیر اخلاقي تقسیم پښتون په ذهني توګه تسلیم کړو. او دا دَ پښتون تام زرګونو کلونو تاریخ کښې تر ټولو لویه المیه ده. اګر چې د ډیورنډ کرښه کال

هیڅ وخت نه دي. دا د تاریخ په پیمانه محض یو څو ورځې دي څو بیا هم پښتون په دومره لږه موده کښې خپل وجود دې حد پورې هیر کړو چې یوه ټوټه د هندوستان برخه جوړه شوه.

دا هغه پس منظر وو چې حضرت باچا خان په کښې د عدم تشدد په بنیاد خپل جد و جهد شورو کړو. ده د خدائي خدمتګارو په شکل کښې پښتون منظم کړو. ده زیلي خلقو ته احترام ورکړو او هغه کسان چې د پښتون په ټولنه کښې به ورته په سپک نظر کتلې شول. ده خدائي خدمتګارانو کښې ځائې کړل. او داسې حضرت باچا خان اولنې پښتون مشر دې چې پښتون قام یې د لاندې نه یو کړو، یو قوت یې ترې نه جوړ کړو او د انګریز سره یې اُخښکولو. ده د لوئې او وړوکې، اعلیٰ او پست پښتون ترمینځه ذهني تقسیم ختم کړو. د بنیادم او بنیادم ترمینځه مکمل مساوات د پښتنې ټولنې روح دې. د انسان او انسان ترمینځه فرق او امتیاز د هندوستاني ټولنې مزاج دې چې انګریز دې ته نور تقویت ورکړو.

وجه هغوی دا چرې نه غوښتل چې پښتون یو سیاسي قوّت جوړ شي ـ انګریز حکمرانن دَ باچا خان خلاف کاروائی تندې کړې او دَ دې کاروایو په نتیجه کښې بې باچا خان دې ته مجبوره کړو چې د کانګرس ملګرتیا ته بې لاس اوږد کړو او بیا باچا خان دَ برصغیر تقسیم پورې د کانګرس ملګرې پاتې شو۔ د کانګریس سره د ملګرتیا په نتیجه کښې دَ پښتون رخ په نا محسوس ډول د جنوب په لور اُکږځیدو۔

د حضرت باچاخان خدائي خدمتګار تحریک د کانګریس سره دَ متحده هندوستان د آزادۍ جدو جهد په داسې طریقه ګډ په وړاندې بوتلو چې په زرګونو پښتانه جیلونو ته دننه کړې شول او په سوونو مجاهدینو د سرونو قربانۍ ورکړې۔ دې عمل که په یو لور پښتون ته سیاسي شعور ورکړو او د انګریز نه د آزادۍ موندلو خواهش لور نود شو په بل لور د پښتون تمام دوارۀ برخې ــــــلو او بر پښتون دَ یو بل نه لرې شوې دَ دوی تر مینځه فاصله نوره زیاته شوه ـ دا په اصل کښې د غیر فطري عمل یوه غیر فطري نتیجه را پیدا شوه۔ لکه څنګه چې ما عرض کړې وو چې پښتون د هندوستان سره دَ دې نه وړاندې څه تړون نه وُو ـ او

کانګرس سره اتحاد ته نه وو مجبوره کړي. نو کومه وینه چې پښتون د متحده هندوستان د آزادۍ د پاره تویې کړه دا وینه که د پښتون قام د وحدت د پاره نو تویې کړي شوې وه او د باچا خان په شان لوی مشر په قیادت کښې د پښتون وحدت د پاره دا دومره لویه قرباني ورکړې شوې وه. نو دا به د یوې غیر معمولي کامیابۍ نتیجه ګرځیدلې وه او پښتون به خپل قامي وحدت ترلاسه کړې وو. او مونږ دا خبره په یقین سره کولی شو چې نن به پښتون د دې سیمې تر ټولو مضبوط قوت وو.

اوس هم د پښتنو مشرانو دا فرض دې چې د پښتون قامي وحدت حاصلولو د پاره هلې ځلې اوکړي. ځکه چې ترڅو پښتون تقسیم وي، بې مرکزه وي، بې وحدته وي هغه وخت پورې د پښتنو قامي احترام او وقار نه شي په ځائې کیدې. بیائې دا نه چې پښتون قام او پښتنه سیمه به ټیاه وي بلکه د کمزورۍ، برباد او منتشر پښتون په وجه ټوله ایشیا ربړوره پرته وي.

زه لاس په دعایم چې الله تعالی دې مونږ ټولو

تول ښه په مړانه او ایماندارۍ سره د پښتون وحدت تر لاسه کولو د پاره شعوري جدو جهد اوکړو ولې چې د قامي وقار، عزت او خپل واک او اختیار ته بل هیڅ څه برتر او اعلیٰ تر نشته۔

تل دې وي پښتون او پښتون ولي۔

محمد افضل خان
مشر
پښتونخوا قامي پارټي
درو شخیله - سوات

# حضرت باچاخان

# ژوند او فلسفه

## پیژندګلو

## حضرت باچاخان په عدم تشدد عمل کوونکی د اسلام سپاهی

لکه څنګه چې د سرخط نه څرګندیږي د کتاب نوم "حضرت باچاخان ژوند او فلسفه" دی. دا د

A MAN TO MATCH HIS MOUNTAINS

ترجمه ده. دا ښاغلي ایکناټ سوارن لیکلې ده چې په امریکه کښې میشته یو نوموړی عالم او فاضل شخصیت دی په حضرت باچاخان کتاب لیکل نه یوازې په پښتنو یو احسان

ښاغلي ایکنات د باچاخان سره لیدل کتل کړي دي مرکې ئې ورسره کړي دي او وائي چې زهٔ د هغوی نه ډیر زیات متاثره یم او هم دا وجه ده چې ما پرې کتاب اولیکلو او دا یوه نرېښنه مې سر ته اُورسوله.

ښاغلي ایکنات امریکې ته د تلو نه آګاهو بهارت کښې یو لیکوال وو، یو مفرر وو او د انګریزي ادب پروفیسر وو. "د خپل هیواد د غرونو هومره دنګ انسان" نه علاوه دوه په ګاندهي جي هم کتابونه لیکلي دي او د نورو کتابونو مصنف هم دے او امریکه کښې د نړۍ د لویو لویو مذهبونو روحاني روایاتو په بابله لیکچرے هم ورکوي.

د یوې ژبې نه بلې ژبې ته څه مواد آړول ډیر ګران کار دے. خو که ذاکران کار څوک اُوکړي نو ژبه وده اُمومي. ژبه نوره زیاته مره پښه شی. وائي چې ترجمه یو فن دې او زهٔ دا دعوی نشم کولې کني زهٔ د دے فن نه واقف یم. دا یوه جذبه ده چه زه ئې اُپاروکم او په دې حقله مې د میاشتینزې "پلوشه" مدیر ښاغلي عبدالفتح پښتون سره خط و کتابت اوشو او د هغوی دَ ذاتي دلچسپۍ په وجه دا

د مل ځائې ودکړو. دا يوه اوږده سلسله ده چې دَ خپل
هيواد دَ غرونو هومره د نګ انسان د سوخط لاندې شائع شوې
وه او تقريبًا دوه کاله کښې سرته اُورسيده. دا د غني کل
په نوم شوې وه. چې اوس د غني خټک د نوم لاندې کتابي
شکل کښې شائع کولې شي دَ دې وضاحت ضرورت ځکه محسوس
کړې شو چې د لوستونکو په ذهن کښې څه ابهام پيدا نشي.
او لوستونکي ترنه څه څوند هم واخلي.

دا به حضرت باچاخان د يو مستند کتاب ترجمه
ده. ډير امکان دې چې د حضرت باچاخان په بابله
دَ څيړونکو په کار به هم راشي.

د دنيا ټولې ژبې څپلو کښې خويندې دي او هغه
ژبې مخ په وړاندې ځي چې دَ نورو ژبو نه څه واخلي
او د ترجمې په شکل کښې ئې ځان کښې ځائې کړي. د يو نيمګړې
اديب په حيث خو زه دا نشم وئيلې چې د پښتو ژبې
په لړ کښې چا د ترجمې نبه او زيات کار کړے او د ترجمې
معيارې څهٔ دے؟ او دومره پوهه يم چې پښتو ژبې کښې
د نورو ژبو ترجمې [illegible]

مذکرتیا ویي که دوی ځما د ترجمې غلطۍ معاف کړي او که ضرورت کنړي چې نبه د زړهٔ دَ اخلاصه پرې تنقید اوکړي او رهنمائي مې اوکړي.

د حضرت باچا خان په بابله یکل شوي د دې کتاب ځلور حصے او څوارلس بابونه دی.

د بناغلي بیکوال د لنړې پیژندګلو نه پس او د سریزې او مقدمې نه وړاندې د حضرت باچا خان خدای بخښلي ستر خواهش ځرګند کړې شوې دې. حضرت باچاخان وائي چې ځما یو لوې خواهش دې. دا خواهش څه دے؟ وائي چې :-

۱- زهٔ دا شریف، نورزن او په وطن مئین اولس د بهرما د ظلم او زیاتي نه آزادول غواړم چې د چا د لاسه دوئ بې عزته شوي او سپک شوي دي.

۲- زهٔ د دوی د پاره یوه آزاده نړیه قائمول غواړم چې چرته دوی په امن کښې اوسیدې شي او چې چرته دوی په خندا او خوشحالۍ وخت تیرولې شي.

۳- زهٔ هغه ځمکه نیکلول غواړم چرته چې وړاندې د دوئ

۶- زهٔ غواړم چې لاس کښې مې جادو وي او د دوی کوڅې پرې جادو کړم. زه د دوی کودونه په خپلو لاسو صفا کول غواړم.

۶- زهٔ د پښتون د جامو نه د وینو داغونه وینځل غواړم.

۶- نهٔ نړی ته نیودل غواړم چې راشي اُګوري څما د دې غرونو او راغونو اُولس څومره ښائسته دې او بیا زهٔ دا اعلان کول غواړم چې څوک داسې شته چې د دوی نه زیات مهذبه، ښناک او متمدن دی.

ښاغلي لیکوال د حضرت باچا خان د دې خواهش څرګندونې نه پس سرېزه کښې لیکلي دي چې د باچاخان په بابله د دے کتاب د لیکلو دوه وجې دي. یوه خو دا چې د هغوی سره زه ډېر عقیدت لرم او که دې لړ کښې را نه څهٔ غلطي شوي وي چې د هغې تلافي اوکړې شم. او دوئیمه وجه د موجوده حالاتو سره تعلق لري.

لوی جنکشن دی.

د ناګپور په سویل کښې "واردها" نومې یوه قصبه ده چې د ناګپور نه نوي میله لرې پرته ده. دلته ګاندهي جي د خپلو نږدې نږدې عقیدت مندو سره استوګن ؤ. د بهارت د آزادۍ د تحریک مشران به دلته اکثر تلل راتلل او دا ټول مشران به په ناګپور نیږدل زۀ به هره هفته د ناګپور د ریل ګاډی سټیشن ته تلم او اکثر به مې "واردها" ته تلونکي سیاسی مشران لیدل او دغه شان ما نهرو، سردار پټیل، مولانا آزاد، اچاریه کرپلانی، بیګم سروجینی نیدو، سی. وی راجګوپال، اچاریه راجندره پرشاد چې روستو د بهارت صدر اُنا ګلی شو او په یوه خاص موقع مې خان عبدالغفار خان هم اولیدو زۀ د دۀ په لیدو ځکه ډیر زیات خوشحاله شوم چې دي په حقیقت کښې څما ډیر خوښ وو باچا خان د ګاډي د دریمې درجې ډبې نه را کوز شو دې یو لوړ دنګ انسان وو او ماته یو

کښې يو خاص شان او ښائست وو. خو دې چپ چاپه او ساده بوده دی. ښځې ماشوم غونډې ږو. دې دومره ساده وَو چې زړه مې غوښتل چې دَ دهٔ سره کښېنم او خبرې اترې ورسره اوکړم.

خو په دغه موقع ما د دوی سره د خبرو اترو کولو زړهٔ ځکه اونکړې شو چې زهٔ خپله هم ځلمې او بې زړهٔ ووم. خو ما چې د دوی متعلق څهٔ اورېدلی ږه په ليدوئې تصديق اوشو. هغه دا چې د کانډهی کښې چاپېره څومره مشران وو دوی ټولو کښې يو باچا خان يو داسې مشر ږو چې په کانډهی ښهٔ پوهيدو او دا ايکې يو کس وو چې د کانډهی په قدم يې قدم ايښې ږه. بلچا خان يو ښته من انسان وو. خپلې ځمکې يې ځامنو ته حواله کړې او ده خپل ژوند د الله تعالیٰ او د خپل غريب او نادارو اولس خدمت ته اُسپارلو. دهٔ ساده جامې اَغوستې دې يو وړوکې پنډوکې ئې لاس کښې ږو. بس يو ملنګ ږو داسې يو کس وو لکه چې هر څه ئې په شا کړې دي. نه

دِ آزادئ په تحریک کښې د ګاندهي ملګری دي او په دهٔ
پسې روان دي دوئ ټولو کښې يو باچا خان داسې دې
چې د سياسي نظريې نه علاوه هم د ګاندهي ملګرې دې.
او غالبًا چې هم دا وجه ده چې د باچا خان سره ځما
دومرهٔ مينه او عقيدت پيدا شوې وو. باچاخان کال
تولس سوه تولس کښې د ګاندهي ملګرې شو او د دې نه
پس په يو موقع هم دَ ګاندهي کوښې نه کړو. زهٔ دَ
بهارت د ټولو مشرانو هم ستائينه کوم خو هغوئ د ګاندهي
روحاني حيث او نه پيژندے شو او هغوئ په ايمانداري
سره دا خبره منله هم ـ ټول بهارت کښې يو خان داسې
کس وو چې د ګاندهي په روحاني اصليت پوهه او رسيدلې
وو.

يو وخت داسې وو چې ما د ګاندهي په قوت ځان
د رسولو کوشش کولو. زهٔ حيران وم چې داسې يو کونډي
انسان کښې دومرهٔ قوت او طاقت او اثر له کومې ځنې
راغې؟ او په دې لړ کښې ما د باچا خان نه تپوس

نو خان زهٔ ډیر په ساده ټکو کښې پوهه کړم چې زهٔ د ګاندهي سره ځکه منګرې شوې یم چې "ګاندهي ځان الله ته سپارلی دی." وروستو دې سنن خان هم داسې اوګڼل چې د خپل اولس په خدمت کښې ئې ځان خاورې ایرې کړو. دَ دې نه دا حقیقت هم جوتیږي چې که یو انسان غواړي او لټون کوي نو د خپل ځان په لټولو خپل ځان کښې څومره ذیات قوّت پیدا کولے شي. څومره اثر ناک کیدې او تل تر تله ژوندي پاتې کیدې شي.

دا زهٔ ډیر په افسوس سره وایم چې بهارت د آزادۍ د دې تورن جنګیالي د پاره هیڅ اونکړې شول. د آزادۍ نه سمدستي وروستو بلچا خان او د ده ملګري پاکستان کښې په دې وجه اُنړلے شول چې دې د بهارت د تام پرستو مشرانو ... ملګو نیاېې کړې ده. د بهارت د پارهٔ دَ دهٔ سره لاس کول ممکن نه وو. زهٔ اُمید کوم چې دا کتاب به د هغې کمۍ څه نه څه تلافي اوکړې شي.

په ګوته کړې شي. باچا خان په نړۍ کښې د عدم تشدد تر ټولو لوی تفسیر دې. دې یو پوخ مسلمان وُو. د ده په ژوند کښې د اسلام هغه ځیرۀ ښکاره ده چې غیر اسلامی هیوادونو ته هغه په نظر نه راځي. مسلمانان خپله هم د هغې حکمت سره بلد نه دي کوم چې عدم تشدد کښې پټ دې.

د حضرت باچا خان ژوند د دې ښکاره ثبوت دې چې د اسلام په دائرې کښې دننه د تشدد یو بسه بدل عدم تشدد دې. پښتونخوا چرته چې دې سټر خان کار اوکړو پنځه کم سل فیصده مسلمانه ده. دَ ده د عدم تشدد پوځ. خدائي خدمتګاران ټول مسلمانان وو. د ده دَ تحریک بنیاد د اسلام په پخواني اُصولو اړه لرله چې نړیي واله ددرولۍ په کار ده. خدای ته ځان سپارل په کار ده او د الله تعالیٰ خدمت دَ هغهٔ د مخلوق تخدمت په ذریعه کول په کار ده.

حضرت باچا خان وائي چې دا ځما پوخ باور دې چې

شي نو دا غصه او کرکه او نفرت په مینه کښې بدلولې شي.

د خان ټولنّ ژوند او عملّ په دې ژور اُصولّ اړه لرله دهٔ د یو سل زرو پښتنو مسلمانانو یو داسې پوځ تیار کړو چه په دغه اُصول یې باور وو. د دهٔ خدائي پوځ د بهارت نه شهنشاهیت ختمولو کښې یو زبردست کردار اُدابو‌و. که چرې د دهٔ په مثال عمل اوکړې شي نو نه یوائې مغربي دنیا. بلکه هغه ټول مسلمانان چې مینځني ختیز کښې په تشدد اخته دي په دې ځان پوهولې شي چې دَ اسلام لوئې لوئې مذهبي قدرونه د عدم تشدد سره سمون خوري او دَ عدم تشدد... برکت لوې لوې شخړې هوارېدې شي.

د سریزې په پایه او مقدمې نه وړاندې بناعلي لیکوال دا کتاب د امریکې اولس په نوم منسوب کړې دې او دا خیال یې څرګند کړې دې چې که "د امریکې اولس توت حوصله او فلسفه د عدم تشدد سره ملګرې شي نو تاریخ نه یوه بله لاره نبودلې شي!

کښې کراچۍ کښې د خلکو نه ډک د اسمبلۍ هال په ډاګه ناست وُو. دَه لیدل چې اسمبلۍ د پګړیوالو پنجابیانو خانانو، د سویلي قبیلو د مشرانو نه ډکه ده. دې کښې بلوچیان هم وُو. او سندهیان هم او پښتانهٔ هم دغلته موجود وو. دې هال کښې ټول نوموړي مسلمانان مشران لیاقت علی خان، خواجه نظام الدّین، اسکندر مرزا او د وائسرائے سره نژدې د اولنی اسلامي جمهوریے جوړیدونکي ګورنر جنرل باوقاره محمد علی جناح موجود وُو.

خو دویه کښې یو نوموړې مسلمان مشر عبدالغفار خان موجود نه وُو. دا هغه شخصیت وُو چه انګریزانو ته یرولي وو او په ټوله کښې ې د ټولو نه زیات جنګیالي اولس پښتون یو فوځي قوت کښې بدل کړي وُو چې فلسفه یې عدم تشدد وه د پښتونخوا اولس د دې شخصیت ډیر زیات عزت او لحاظ کولو او دې ته بادشاه خان د "خانانو باچا" بلله تل بهارت کښې دې په دویم ګاندهي مشهور وې ځکه چې د دَه او د ګاندهي طریقه یوه وه.

هغه دِ اسمبلۍ کښې موجود نه وې ولې ماونږ بیا
په څه ګونه په خوله او حیران شوې نوي چې خان
چې یو سپیځلی او پوخ مسلمان وو د برصغیر د ولس مخالف
وو.

یو څو ګهنټې وروستو ماونږ بیاهم نچل رائل ایئر
فورس جهاز کښې نوې دلي نه روان شو دغه شپه دَ
نیمې شپې د آزادۍ یوه بله دستوره کیدو نکې وه. دغلته
نوې دلي کښې هم د بهارت د آزادۍ د تحریک نوموړي
مشران اسمبلۍ کښې موجود وو ولې هغه کس چې د
چا په غږ به لکونه اولس حرکت کښې راتلل ګاندهي جي
زاهد د دستورې د ځائې نه په سوونو میلونو لرې
وو دۀ هم د دستورې مخالفت کړې وو. او دغه ورځ
یې عبادت او روژې کښې تیره کړې وه.

د باچاخان د پاره د آزادۍ مقصد د دې نه سوا
څه کیدې شو چې دا به وروستو پاتې پښتنو ته څه
ورکړي؟ پښتون پسمانده وو. اولس هم نالوسته وو.

د فاع کښې پښتون د وينو په سمندر پورې رنې دي.
کال آنس سوه يوکم شپيتم د ۱۸۵۹ء) کښې جرنيول چيمبر
لين د پښتنو خلاف د يو مهم په دوران کښې لندن ته يوه
چټهي کښې ليکلي وو چې:

" په پولو د جنګ يو غټ زيان دا دې چې په سوؤنو
کورنۍ تباه او بربادې شي خوځومره پورې چې د وحشي
قبائليو تعلق دے. د دوی په نزد حق د هغه چا دې
چې څوک زور آور وي. په دې وجه د دوی په لر کښې
پواځني لاره دا ده چې دوی ټولو ته تکليف او رسولې
شي" او که چرې د تهذيب په خوالې سره دوی ته په
ورکړې شوي سزا اعتراض اوشي نو ځواب يې دا دے
چې د وحشيانو او ځناورو قبائلو سره په مهذبه توګه
جنګ نه شي کيدې او که مونږ د دوی کورونه تباه
نکړل او د دوی فصلونه مو خراب نه کړل نو د دې
مقصد به دا وي چې د دوی سره جنګ نه شي کيدې.

د پورته نکو نه د هغې دوئے جاج اخستې شي کومه

خیر بې رحمه، غداران او قاتلان دي. د دوی په خیال کښې د پښتون سره د ظلم دویه ساتل جائزه وه د دوی ګناه دا وه چې دوی د خیبر د درے نه اخواه د یخواه غرونو کښې استوګن وو. خیبر بهارت ته دَ رسیدو دروازه وه او د ایمپائر د دولت او امارت یو غټه وسیله. انګریزانو په هر قیمت دالارهٔ قابو کښې ساتل غوښتل. او پښتون هم چې آزادئ ته د قدر په نظر ګوري. د خپلې آزادئ ساتلو پخه اراده کړې وه.

انګریزان به د پښتون د نوم نه یریدل. دا ویره د انګریزانو مازغو کښې د کال اتلس سوه دوه څلویښتم (۱۸۴۲ء) د جنورئ د یو یخ سحر راسې پرته وه چې کله دَ انډس آرمئ پنځه خلویښت سوو نوځیانو کښې ایکي یو کس ژوندے پاتې شو او د خپل بدبخت قصه یې تاریخ ته اوسپارله د هغې نه پس د انګریزانو او پښتنو ترمینځه اتیا کاله کوټلا جنګ اوشو او د دوی کړکه د یو بل خلاف نوره سخته او

بخه شوه. انګریزانو د پښتنو په کلي ...

کېنې يو پښتون داسې نام وو چې د زړګونو په شمير کېنې د انګريزانو په جيلونو کېنې بندي وو. انګريزانو دوی ته د يو بل خلاف رشوتې او بډې ورکړې خو د انګريزانو ټولې طريقې او سازشونه په دغه سيمه ناکامه شول د انګريزي ايمپائر د پاره د پښتنو وطن هغه يواځنې وطن وُو چې ددی په مکمل ډول فتح نه کړې شو او دا دَ انګريز په زړهٔ چېر لوئي ارمان پاتې شوې دې.

د پښتنو په بابله د انګريزانو يوه عقيده ځنه وه هغه دا چې" امن پاتې کيدې نه شي او انګريزي فوځ به يوځل بيا په خوشو ټنو غرونو ديرې اچوي" د انګريزی ايمپائر فوځ دځمکې په ټخو براعظمونو پروت وو او په ددی کښ پښتونخوا هغه سيمه وه چې انګريزي فوځ کښې پروونکي" بللې شوه.

دَ انګريزي تاج ايمپائر جوړوونکو د پاره تاريخ دا ډير يو عجيبه کار اوکړو چې د دغه يروونکي" ځمکې د زړهٔ نه يې يو داسې کس را برسيره کړو چې هغه خپل

د پښتنو د نورې ځمکې نه به دا سې یو شخصیّت را پاڅي او دومره لویه کارنامه به کوي څو دا کار شوې دې دا د تاریخ ډېره لویه غیر معمولي واقعه ده څو نظر انداز شویده او چا ورته خیال نه دې کړې

د باچا خان وروستو پاتې نیاتلو د انګریز بخت په ختم کړو. دې پښتنو ته هغه وخت د ټولې اولس کوټه په خوله پاتې شو چې کله دوی خپلې توبکې چړې او مشکینونه کینول او ایمپائر د زور او جبر مقابله یې د عدم تشدد په ذریعه اوکړه.

کال نولس سوه دیرشم کښې د عدم تشدد تحریک نه په چپو وو، د سر نیول چیمبر لین د دلپورټ - زیات زړه ور یو بل دلپورټ کښې دا تجویز کړې شوې وو چې " په ځناورو د ځناورو حکومت په کار دې" د انګریزانو په نظر کښې د باچاخان عدم تشدد د دهوکې نه سوا هیڅ نه وو. د هغوی فکر دا خبره نه منله چې دا څنګه کېدې شي چې پښتون په د عدم

د هغوی په نظر کښې پښتون هر څه کیدې شو خو د عدم تشدد پیروکار نشو جوړیدې. د هغوی په خیال کښې داسې وئیل او ځان داسې ښکاره کول څوله دهوکه غداری او عیاری وه.

دغه وجه ده چې د برصغیر د آزادۍ په تحریک کښې انګریزانو په باچا خان او د ده د عدم تشدد په فوځ ډیر ظلمونه اوکړل. داسې وخت هم راغلې دې چې نړۍ نه به د دغې صوبې د حال احوال هډو څه پته نه لګیده چې کله به کلهمه صوبه د دنیا د سترګو نه پټه اُساتلې شوه دغه وخت کښې به انګریزي فوځ د دوی سره د ظلم او زیاتي هره یوه چاره په کار راوسته. که څوک دا تاثر نري چې انګریز بهارت کښې یو نرم او رحم دِله دشمن وو هغوی حله داسې خیال کوي چې د هغه ظلم علم وړته نشته چې کوم په باچا خان او په پښتون شوې دې دیرشمې او څلویښتمې سن کلیزه کښې پښتنو ډیرې زیاتې زعملې او برداشت کړې دي. د دوی پوره پوره کلي تباه کړې شوي دي د دوی فصلونه تباه کړې شوي او د زرګونو په شمیر کښې جیلونو

دي او اکثر به ځان نه يواځي بندي دي حقيقت دا دی
چې هغه د انګريزانو په وخت کښې يوه ورځ آزاده
او بله ورځ په جيل کښې تيره کړې ده.

خو پښتون په خپل عدم تشدد قائم پاتې شو او د خپلې
آزادۍ تر لاسه کولو په لړ کښې په ګڼ شمير کښې مړه
شول او تکليفونه ئې اوزغمل.

د بهارت اولس چې خپله هم د عدم تشدد په لاره
روان وو ـ خو د پښتون عدم تشدد ته حيران ده جواهر
لال نهرو چې د بهارت رومبنې وزير اعظم وو، په دې
خبره يقين نه کولو چې هغه پښتون چې د خپل ... شوم
يا ورور نه زيانه مينه د خپل ټوپک سره کوي څوک
چې د ژوند پرواه نه کوي او د مرګه نه يريږي او
معمولي بې عزتي او سپکاوي بدله په مرګ اخلي څنګه
په نه خه وخت کښې د عدم تشدد په وجه د بهارت يو
نورنن او برداشت لرونکي اولس جوړ شوي وو. دا په
تاريخ کښې ديقين نه کولو خبره ده خو باچا خان دا خبره
رښتنيا کړې ده چې دا خبره غلطه ده کني عدم تشدد د هغه

ډېره خوږ کولی شي. چې نورزن او حوصله مند او زړه ور دي. دې کښې د شک هېڅ خبره نشته چې پښتون یو نورزن او زړه ور اولس دی. یو عام پښتون وګړی هم د بې عزتۍ نه مرګ ښه ګڼړي. دا واقعي چې یوه افسانه ښکاري چې دا سې اولس چې هغوی ته د سړي مرګ د چرګ یا چړکوړي د مرګ نه زیات نه ښکاري هغوی خپلې وسلې یو خوا نه کړې او عدم تشدد یې د ټولو نه د غوره وسلې په حیث خپل کړو.

د ټولو هغه نیمګړو ته په خیر. د حضرت باچا خان د ژوند په تیمبح کښې هغه حقیقتونه پټ دي چې نړۍ ته یې د ښکندولو ضرورت دی او اوس وخت دی چې د لوی خان دا تیمه ښه په تفصیل سره بیان کړی شي.

-٭-٭-٭-٭-٭-

## اولنے باب

# جشن

## (جون ۱۸۹۷ء)

"اے پښتنو! ستا سو کور وران شوې دې. را پاځئ او دا وران کور بیا ودان کړئ او دا خبره یاده لرئ چې تاسو د یو باتور نسل سره تعلق لرئ"

(حضرت باچاخان)

د کال ۱۸۹۷ء د ۲۲. جون په سحر د یولسو بجو نه سمدستي روستو بکنګهم محل کښې ملکه وکټوریه د ټیلي ګرا ف په مشین کو ته کېښوه او دې سره د برطانې د شهنشاهیت ۳۷۲ میلینه اولس د پاره یو پیغام نحور کړې شو دا د ملکې د ډائمنډ جوبلي ورځ وه نن د انګلستان په تخت د ملکې

يو شو منتو کښې د نړۍ د ملکې دا پيغام د نړۍ د هغه سيمو په لور خور يدو چې د انګلستان د باچاۍ برخې وې. دې کښې د مغرب په لور کنيډا، نيو فاونډلينډ نيو ګيني دا د/ ټوبيګو، آئرلينډ، بار بادوس، جونډ وراس او فاک لينډ، د ښمو ختيز په لور جبرالټر او مالټا نايجيريا مصر، ګمبيا، ګولډ کوسټ، رهوډيشيا، سوما لي لينډ يوګنډا، او زن زي بار، بهارت، سيلون، برما ملائيشيا هانګ کانګ، سنګاپور او آسټريليا، شمالي بور نيو، فجي او جنوبي اوقيانوس کښې دوه درځنې نورې جزيرې. په دې ټولو علاقو د انګلستان حکمراني وه او يا پرې څه نه څه قسم اثر وو په دې سيمو به د انګلستان بيرغ رپيدو او سپين پوستو فوځي افسرانو به پرې حکومت کولو او لا به انګريزي ويونکو سول ملازمانو په دوی حکمراني کوله.

د ملکې پيغام ختم شو، دې نورې جامې اچولې وې

وکټوریه - او ټول انګلستان ته تشکر په کار وو ولې چې
: دې نه اګاهو په لړه کښې د انګلستان هومره قوت
دَ بل چا نه وو. دَ دې باچاې کوښې لوې لوې خورې
ورې وې او د انګلستان د باچاهۍ د شان او شوکت
او رعب او دبدبې د مقابلې کولو قوت چا کښې نه وو.
د نړۍ په هر یو براعظم اوسمندر د دې علاقې پرتې وې
او د ټولې نړۍ څلورمه برخه ځمکه د انګلستان د بیرغ لاندې
وه او هم دغه شان دې د ځمکې په مخ آباد د ټولو بنیادمانو
څلورمې برخې ذمه داري د دې په سر وه.
دا دَ انګلستان یوه لویه او عظیمه کامیابي وه. د انګلستان
بحري د نړۍ په سمندرونو حکومت کولو او په هره یوه لمحه
کښې د انګلستان سمندري جهازونو یورپ، ایشیا، افریقې، امریکې
او جنوبي سمندرونو کښې څلور سوه زره کسان د یو ځای نه یو ې
چاونړۍ یا قلعې نه د بل هیواد چاونړۍ، بنارونو یا قلعه
ته رسول. د جشن په کال کښې چې د سویز په نهر څومره

پوره وه، هغه څوک چې دې جشن کښې شامل شول دَ هغوی په نظر کښې دا د دې خبرې ثبوت وو چې انګلستان د نړۍ په حرش بختو هېوادونو کښې یو وُو. د توانائۍ او قوت ښنښنې په دې هېواد به چرې هم سترګه نه لوېده. د یو حاج مطابق لپه دغه جشن د نړۍ په تاریخ کښې یوه ډېره لویه خوچه شوې وه.

د وکتوریه سره پرېښانکښې دَ یولسو کالونو وزیر اعظمان ددې دیرش شاهزادګان، د هندوستان څلوېښت راجګان او یو ولي عهد شامل وو. په پنځوسو زره. فوځیانو مشتمل دا پرېښت د لندن په تاریخ کښې تر ټولو عظیم پرېښت وو.

په دغه ورځ ماښام پورې آسمان تک شین وو دا چې ښکارېده لکه چې نن د "ملکې موسم" وُو. فوځیان پرېښت کښې تېرېدل، ډولکي وهلې شول او د انګلستان د یو ښېر زر بېرغونه هوا کښې رپېدل د میلینو خلقو د لاسونو پړقيا کښې ملکه وکتوریه د دوړه په خوا کښې تېرېده او دځوښې نه سترګې د اوښکو ډکې وې. دې په لاره ولاړ تماش بینو

په ننني ورځ به د هر يو انګريز دا يقين پوخ شوي دي چې په نړۍ حکمراني کول د انګلستان مقدر کېښي ليکل شوي دي. د نړۍ بې شميره ځابونو کښې چرته چې تکه تور تياره خوره ده هلته به د قانون حاکميت قائمولى شي او ناپوه او نالوتي وحشي خلکو ته به د انګلستان د باچاهۍ په ذريعه رڼا او تهذيب رسولى شي. هندوستان کښې يو ځواني سول ملازم د انګلستان دارالعوام ته اوئيل چې بهارت کښې دا د هر يو انګريز يوه عقيده او يو باور جوړ شوې دې. داکه وائسراې دې او که يو عام انګريز چې" زه د داسې يو نسل او قام وګړې يم چې چا ته خدای پاک په دنيا د حکومت کولو ذمه داري او نور اُلسونه د غلام کولو کار ورسپارلې دې۔"

او چا د انګريزانو د دې فکر او باور خلاف دليل ورکولى شو؟ د انګريزانو نه يو سخت نفرت کوونکې او

د جون په دغه سمی د باچاهۍ په یو لوړ پروت
ګوټ کښې د برطانوي هند د پښتونخوا په سیمه د ملکه
وکټوریه یو کم عمره غلام اوه ګلني عبدالغفار خان د
سوات په سیند کښې د اوبو په سر بهیدونکي لرګي را
ایسارولو په هسه کښې بوخت وو. ستړ که بنه ځلیده په
دغه سمی وادۍ کښې بنه یخه هوا چلیده. د دې سیند
په غاړه د ده د پلار د زمیندارۍ بیتني ووُ.

غفار خان د ملکه وکټوریه د نوم او مرتبې نه غالباً
چې لا ناخبره وو. دلته د پښتونخوا په سیمه خو دَ
انګلستان پولټیکل ایجنټ هم یو باچا وو. او د دې ځایه
په زرګونو میله لرې یوې ملکې خو د یو لوستي پښتون
د پاره هم څه اهمیت نلرو. په دغه وخت نو د دغې
هلک د پاره هغه لرګي زیات اهمیت لرو چې د سیند
د غاړې نه د سیند مینځ ته بهیدو او دهٔ ي د نیولو
کوشش کولو.

آواز بیا نا اوریدلې چوب شو۔ دا څه غیر معمولي خبره نه وه۔ چې د ده به کوم لوري نه اوکوم کار نه پام اوګرځید و۔ دې به هغې کښې دومره ورک شو، دومره زیات مشغول او بې پامه به شو چې بو، دوه، درې آوازونه به ئې نه اوریدل دَ ده پام چیر ژور وو او دې به د غه شان تل تل د خیل پلار د سنګرو، الوچو او ناشپاتو باغونو او د سوات د سیند په رو رو بهیدونکی اونکو نورو اوبو کښې دَ خپل ځان نه بې خبره وو۔

غفار خان د بهرام خان د ټولو نه کشرې ماشوم وو۔ د دهَ دوه مشرانې خوېندې او یوروړور وُو۔ رور د دهٔ نه ینځه کاله مشر وو۔ او صوبائې دارالحکومت پیښور کښې بې په ایډورډز میموډیل مشن هائي سکول کښې سبق وئیلو۔ د غفار خان به د خپل رور سره ډیر لیدهٔ کاتهٔ نه کیدل۔ خو دا د جون میاشت

يواځې ژړ لګه چې نن په دغه ورځ وونو دې به اکثر
کلي ته ور ننيږ شو چې ته چې د دغه همځولې ملګري
وو. ده به د مزدورانو او کسب ګرو ځامن ډېر خوښول
اګرچې دا د خان د ځوی سره څه عجيبه غوندې کار
ښکاريده. او د ده دوه خاص ملګري ښګيان ود

دغه د وېړمو ډک سمڅ خو داسې ښکاريده چې د سيند
په غاړه د لوبو د پاره راغلي دي. او ځکه دې به سمڅ وختي د
کور نه د سيند غاړې ته اورسيده او چې کله به يې اوليدل
چې اوبو يو لرګی راخستې دې نو د دې لرګي نيول خو به د
دوي د پاره سمه سکه يوه لوبه جوړه کړه.

غفاره! دا ځل دا آوازه د ګولۍ په شان تيز وو. ده
اخواه دېخواه اوکتل. دا د ده پلار بهرام خان وو چې
دې ېې بللو. او دې په بلنه د پښې د کور په لور روان شو.

بهرام خان لږ اخوا ولاړ وو او په سريې د ډوډۍ
شکور پروت وو. ده نه چې غفار خان ورنزدې شو نو

لرو چې ډېره موده ورانده د پېښور د زرخېزې وادۍ ته راغلي ود. دوی د انګلستان د حاکميت لاندې د خوشحال ژوند تېرولو په غرض دې وادۍ ته راپرېوتي دي.

انګرېزانو د خپل مصلحت د پاره پښتونخوا په دريو جغرافيائي برخو کښې وېشلې وه. دا سيمې آزادې سيمې دلته پښتنو د پښتون ولۍ د قاعدو او پابندو مطابق د خپلې مرضۍ ژوند تېرولو.

د پښتونخوا دوه ميلينه پښتانه په دېرشنو قبيلو او خيلونو کښې وېش دي. د پښتونخواه په لويو قبيلو کښې اپريدي دي چې انګرېزانو به ورته د خيبر د درې د حفاظت په لړ کښې رانمونه ورکول. د مومندو او يوسفزو قبيله وه چې د پېښور په قطب کښې غرونو کښې استوګن دي. د اپريدو سره خوا د خيبر په سهيل کښې اوړکزي دي او نور د سهيل په لور وزير او محسود دي چې غالباً ټولو پښتنو قبيلو کښې زياتې تندخويه او غضبناکې قبيلې دي.

راج په دې قبيلو نه د امن قائم ساتلو په غرض رقم

ځلولینت کلني حکومت کښې انګریزانو آزادي سیمې ته پنځوس ګهونه په دې غرض لیږلي وو چې باغي قبیلو ته سزا ورکړي. خو دا پالیسي چېرته کامیابه نشوه. البته د ټول عمري جنګ په مقابله کښې دا پالیسي غوره وه.

د بهرام خان قبیله "محمدزی" تقریبًا تقریبًا د ټولو پښتنو قبیلو نه ورکوټې وه. ولې دا یوه مالداره او امن ناکه قبیله وه. بهرام خان خیله هم یو مالداره سړې وو. د دې نه علاوه دې خان وو. د اتمانزو مشر وو. دا کلي د پېښور په قطب کښې د ښار نه تقریبًا شل میله لرې پروت دې.

د اتمانزو دا کلي یو مالداره کلي وو. د دې کلي لویې لویې کوڅې دي او دلته د خاورو او لرګو نه جوړې دوه چنبې کودنه وو. دا د پښتونخوا صوبې په مینځ کښې پروت دے. د اتمانزو په قطب کښې د سوات او دیر باجوړ او بونیر غرېزې سیمې پرتې دي. دا د کودو ځنګلو او شور کوونکي سیندونو سیمې دي.

دَ دې سیمو لارودي به د بهرام خان په حجره کې

، آتمانزي د پېښور او د قطبي غرېزو سيمو ترمېنځ په لاره پروت دي. دا ميلمانهٔ به چې په څهٔ اراده هم روان وو خود پښتنو د اولسي قاعدې" ميلمستيا" دا غوښتنه وه چې دوی ته دِ دَ دروند ميلمه په نظر وکتې شي او دَ دوی د خوراک او استوګنې ضرورت دِ پوره کړې شي. د دې مقصد د پاره د پښتنو هر يو کلي او بانډه کښې حجره ضرور وي. د بهرام خان په څېر مالداره پښتنو ځان له جدا حجرې جوړې کړې دي. دلته به په ميلمنو زيات خرڅ کيدو ولې چې پښتانهٔ دا عزت او رتبه ګڼري چې زيات نه زيات ميلمه دَ دوی حجرو ته راشي او دوی ورته پوره ښه ميلمستيا ورکړي. په حجره کښې کلي وال راغونډيږي ګپ شپ لګوي، خبرې اترې کوي، محفلې لګوي چيلم څکي او د ښتنو چايو نه خوند اخلي. په حجرو کښې دا غونډې د شپې ناوخته پورې جاري دي، دوی يو بل ته ټپې وائي، ټپې او سندرې وائي او نورې تمالې کوي. کله کله به بهرام خان بالښت نه ډه ډه وهلې وه او

د "عزت" نه علاوه بل داسې نورې نښه چې پښتون ورباندې ببر شي. عام او خاص پښتون په عزت سر ورکوي. خدای دې د انګریزانو سره ښه اوکړي. چې اپريدو، مومندو، يوسفزو، محسود، وزيرو، محمدزو او اورکزو، خپل اختلافات غوڅ کړل او د يو اولس په څېر دَ انګريزانو د تښتولو د پاره راپورته شول د پښتون د پاره د آزادۍ نه بغير ژوند بې مقصده دې. ولې چې د آزادۍ نه بغير عزت چرته پاتې شي؟ دا دغه جذبه وه چې د انګريزانو ښه بخت بې بد رنګ کړو.

په داسې موقعو به ځني کسانو جرګې ته دځان سره شپېلۍ او سرنې راوړې او دا به ئې غږولې او شپه به بې بېداره ساتله. په دغه موقعو به ځني کسانو په خوږه آواز د لافاني خوشحال خټک دغه نظم وئيلو چې

سه ځوانخلي له غليمه انتقام + مرد نه خوب کا نه خوراک کا نه آرام

چې د ننګ و د ناموس نه ئې نه وي + دغه سړي به نه وي آخر تمام

له همت او حميت غير په کښې وي + تر ځښنند نه بهتر کنړه غلام

چې غفار خان به جرګې ته روان وو دا ته به دا نه وه معلومه چې په جرګه کښې به د چا سره د ده ستړې مه شې. خدای دې مل شه کیږي ولې چې د لته خو به اکثر لوی دنګ سرۀ سپین، پګړۍ په سر میلمانه موجود وو. دا میلمانۀ د خیبر شین سترګي اپریدي هم کیدې شو او د ملاکنډ د سیمې یوسفزي هم کیدې شو او پیښور ته روان سواتي هم کیدې شو چې سترګې به یې په راڼو نورې وې، د کلابو ګل به یې ټوپلې وو او ټوپک به یې ټنګ ته ړوړند وو او د قطب د سیمې هزاره وال هم کیدې شو. دا ټول پښتانۀ وُو. پښتو د دوی ژبه وه، دوی به ټول په دایره کښې ناست وو، وار په وار به یې خبرې کولې، چیلم به یې څکلو او خبرونه به یې یو بل ته اورول.

د بهرام خان حجره ملا دماں دو. خو ده به میلمنو ته ډوډۍ خپله دروړدۀ په خیال کښې دا یو برکتناک

وئيل چې يو لا ړو ے ميلمه د الله د طرف نه راځي
او ځکه به د دوی پالنه زړه په خپله کوم.

د (۱۸۹۷) د جون په دغه ورځ به د اتمانزو په
جرگو کښې د ملکې د جشن نه۔ چې زرگونه ميله لوې
وو۔ نورې ډيرې د دلچسپۍ خبرې شوي وي۔ مومند و
يا سواتيانو به د پيښور په لاره د بهرام خان په جرگې
کښې د دې په وخت ضرور دا اطلاع په جوش اوجذبه
ورکړي وې چې ملا مستون چې اوس اوس د افغانستان
نه راغلي دې او نن صبا د اتمانزو په قطب کښې د
غريزو سيمو دوره کوي او دا تبليغ کوي چې د انگريزانو
د اېسلو وخت را نژدې شوې دې۔ ملا مستون وائي چې
رسول الله صلی الله عليه و سلم ما ته خوب کښې فرمائيلي
دي چې د انگريزانو وخت را نژدې شوې دې۔ دې
ميلمنو به وئيلي وي چې ملا مستون وائي او دا لوظ کوي
چې ځما گيتې به د انگريزانو د پاره د توپې گولۍ جوړيږي.
بهرام خان به په دې خبرو حيران شوې نه وي

چتي کولو د پاره انګريزانو پنځلس زره فوځ اچولي وو او هغوی به په دې نتيجه را رسيدلي وي چې د دوی ته په دغه سيمه د لوړو مورچو، کيمپونو او سړکونو ضرورت دې. داسې څه امکان نه شو کيدې کني د قطبي سيمو اولس به د دغه ډېښنه دومره زر هيره کړې وې. د بهرام خان د پاره د دغې اطلاع مقصد دا کيدې شو چې يو بل بغاوت کيدونکې دې ولې چې پنځوس کاله اکاهو انګريزان دې صوبې ته را ېرېوتي وو. د هغې نه پس د دغې صوبې تاريخ د بغاوتونو او د انګريزانو سره د جګړو وهلو تاريخ وو.

## دوئیم باب

# ایسټ انډیا کمپنۍ او په هندوستان

# د انګریزانو قبضه

(جولائي ۱۸۹۷ء)

ځما د اولس تاریخ د کېتو او د مړانې د قیصو نه ډک دی ولې د لته کمې هم شته هغه دا چې د ډیر و قربانو ورکولو نه پس څه تر لاسه کړې شوي دي، هغه خپلو کښې د دشمنو او ذاتي حسد په وجه بابلل شوي دي. دوی نه همیشه خپلو کښې د بې اتفاقۍ په وجه تاوان رسیدلې دې. بهرني قوت په دوی بریالي شوي نه دي. ولې چې څوک د جنګ په میدان د دوی مخه وهلې شي؟

کم از کم ابتدائي وه ځو کښې د انګريزانو داسې څه اراده نه وه کړې چې دوی به خپل شهنشاهيت جوړوي. يو قدم د بل قدم اُچتولو د پاره لاره سمه کړه. دوی د هندوستان د فتح کولو په اراده نه وو راغلي چې ۱۵۹۹ء کښې ايسټ انډيا کمپني جوړه کړې شوه. د دې پاليسي تجارت کول وو. جائيداد جوړول نه وو. د دې په جوړيدو سره د هندوستان سره د دې کمپنۍ يو اوږد عمري تعلق جوړ شو. تجارتي عمل کښې د کمپنۍ افرانو د هرې يوې موقعې نه فائده اوچته کړه او په دغه ډول يې د کمپنۍ کار پراخه کړو. او د نولسمې صدۍ په ابتدائي کلونو کښې ايسټ انډيا کمپني په ټوله نړۍ کښې زياتې اثاثې لرلې. هندوستان د انګلستان د باچاهۍ په تاج کښې يو قيمتي غمې جوړ شوې وو.

دا ټول عمل هغه وخت شروع شو چې کله د تورو مرچو په نرخ کښې اضافه اوشوه. ولنديزيانو چې د

په ستمبر کښې د ایسټ انډیا کمپنۍ په نوم یوه کمپنۍ جوړه کړه. دړې میاشتې وروستو ملکې ایلزبیتهٔ په یو دستاویز دسنخط اوکړو چې د کومې تر څخه دې کمپنۍ ته د کیپ آف ګوډ اپ" نه اخوا د ټولو ملکونو سره د تجلس کالو دپاره د تجارت کولو اجازه ورکړې شوه. د ۱۶۰۰ په اګست کښې دکمپنۍ ړومبې جهاز د بمبۍ سره نزدې دهندوستان مغربي ساحل ته را اورسیده او دغه شان ګوراګیان د تجارت په غرض راغلل.

لږه موده پس کمپنۍ بمبۍ، مدراس او کلکتې سره نزدې د تجارتي ګودامونو حق تولاسه کړو او بیا نو د کمپنۍ جهازونو د هندوستان نه ښه زیات مقدار کښې مصالحې، چیني، ریښم او مسلن کاټن انګلستان ته رسول شروع کړل. او د هغه اړخه به دغه جهازونو د انګلستان تیار جوړ شوي شیان د تجارت په غرض راوړل او ښه زیاته ګټه به یې کوله. د هندوستان حاکمانو د ګوراګانو سره تجارت د ګټې ذریعه اوګڼله

اختل شروع کړل. کمپنۍ د سپین پوستو او هندوستاني سپایانو یو پوځ اودرولو او د کمپنۍ حرص ناکو او حوصله مندو ګورنرانو ځنې سیمې قابو کړې او په دغه ډول د کمپنۍ د پاره فتحو مونډلو یو مسلسل عمل شروع شو او اخري نتیجه یې دا شوه چې هندوستان یې دَ خپلې باچائۍ برخه اوګرځوله.

کال اولس سوه اوه پنځوسم (۱۷۵۷) کښې د کمپنۍ یو کرنل رابرټ کلایو بنګال کښې د یو مقامي حاکم پوځ نه ماتې ورکړه. او په شمالي هندوستان کښې یې د انګریزانو اثر رسوخ ته لاره سمه کړه. په غیر محسوس ډول د کمپنۍ افسران د سوداګرو نه په حاکمانو کښې بدل شول. د دې عقیدې لاندې چې د هندوستان د اسټوګنو د پاره د انګلستان د حاکمیت نه بل څه بنه نه شي کیدې، حرص ناکو ګورنرانو په جنوب کښې میسور او تهروین کور، منځني هندوستان کښې، حیدرآباد او مراټهه او اخر تهول بنګال، دکن او د ګنګا میداني سیمې خپلې

دوسره لوښي وو چې د یورپ براعظم کښې د بل ملک دومره لوئې لوټ نه وو. او کلیزه آمدن به ښې اکثر د عظیم انګلستان د آمدن نه زیات وو. یوائې د شاهي بحري ښې سره دکمپنۍ نه زیات سمندري جهازونه وُو.

د دې عظیمې کامیابۍ په لوس کښې بدعنواني بدانتظامي هم شروع شوه او دې سره سره په ادلس پابندیه اولکولې شوې. د لندن سیاسندان په دې خبرو پریشانه شول چې دَ یوې ذاتي کمپنۍ د ډائرکټرانو بورډ په یو سل میلینو خلقو حکومت کوي. رو رو د انګلستان حکومت د کمپنۍ په اجاره او تجارتي حقونو بندیزونه اولګول او ګورنر جنرل ښې د سرکاري نمائینده په حیث مقرر کړو. کمپنۍ په سرکاري نوکه هغه څه جوړه شوه. چې څنګه عملاً وه یعني د انګلستان د خارجه پالیسۍ یوه آله کاره یو ایجنټ په بل غلبه موندل د شرابو نشه ده او د لوسمې صدۍ په شروع کښې دغه نشه لندن کښې د شهنشاهیت جوړونکو

ځنې هر وکړي په فائدې کښې ده. نو دوه نیغ په نیغه یرغل او حملو ته کوټي واچولې. یو نقاد وائي چې انګلستان به وړاندې یوې علاقه کښې یو ریذیډنټ اوتاکلو او داسې تاکلو کښې به یې د ډرد نه کار اخستو) بیا به یې په دغه علاقه مشورې او نصیحت ورونیلو، بیا به یې په دغه سیمه کښې دید انتظامه نور اوتاکلو او پروپیګنډه به یې شروع کړه، بیا به یې ملا خلت شروع کړو، بیا زور زیاتي او آخر دا چې دغه سیمه به یې خپلې باچاۍ کښې شامله کړه.

دا خبره اوس په ډاګه شوې ده. چې تجارتي جرګو ډ هندوستان په ځرېږي ځمکې قبضه اوکړه. چې کوم کارکیدونکې وو هغه هسې هم وشو ً دا خبره د سنده یو مشر ایګلونډرینس نه هغه وخت کړې وه. چې کله ده په ړومبني ځل د سنده دوره کړې وه." تا زمونږه هېواد اُلیدو ً. دغه مشر زیاته کړه او دې صحي دو. لس کاله پس کال اتلس سوه درې ځلوینښتم کښې دکمپنۍ ګورنر جنرل لارډ ایلن بودو جنرل چارلس نیپیر ته حکم

کښې وو. د آک لېنډ دا خیال مازغو کښې را اوچت شو چې د پښتنو د وطن مشر. د افغانستان امیر چې لرې کړې شي او کابل کښې انګلستان ته په منتقل ډول ځای ورکړې شي ده په افغانستان کښې د ګونو وهلو اخری فیصله کړې ده او په دې غرض ده نه ضروری مشورې ورکړې شوې وې.
آک لېنډ یو پوځ قائم کړو. چې "آرمي آف انډس" نومېده دې کښې ښکلس زره کسان وو او هم دومره شمیر کښې ورسره اسونه، خچرې، اوښان او هاتیان وو. د کال اتلس سوه اته دیرشم (۱۸۳۸) په یومبني اکتوبر آک لېنډ اعلان اوکړو. چې د افغانستان واکمن د خپل هیوا د پراخه کولو منصوبه جوړه کړې وه او د ده د حرص په وجه د هندوستان امن او سلامتیا په خطره کښې ده او په دغه ډول د روس او افغان جنګ شروع شو او انګریزان ډېر په آرام سره دې کښې بریالي شول. دا د پیغلې وکټوریه اولنۍ پوځي فتح وه ګورا کهان کابل ته اورسېدل.

خو د دې کامیابۍ عمر ډېر لنډ وو. افغانان چې قریبًا

موسم کښې افغانانو د انګلستان په ریذیډنسی حمله اوکړه۔ ریذیډنټ ئې او وژلو او پوځ ئې په منډو سرکړو۔

په ۶ جنوری ۱۸۴۲ء د انګلستان څلور زره پنځه سوه پوځیان او دولس زره (۱۲۰۰۰) نور کسان د یخو دړو په لاره د کابل نه د هندوستان په لور روان شول. پښتنو قبیلو په دې پوځ حمله اوکړه او ټول کسان ئې جاروکړل د جنورئ په یوې یخې ورځ ډاکټر ویلیم برائیډن چې د پوځ یو میډیکل آفسر وو مړکونې حالت کښې د جلال آباد قلا ته اورسیدو او د هغه ټندر حال احوال ئې ټیټ کړو چې په دوی را پریوتي وو. یو سویلین چې افغانانو دوستو خوښې کړو اوئیل چې هغه خبره صحي شوه کومه چې موږ د کابل نه د روانیدو په وخت اوریدلي وه۔" چې محمد اکبر به ټول پوځ ختموی او یوائې یو کس به په دې غرض ژوندې پریږدي۔ چې جلال آباد ته واپس شی او دښمنانو حال اووائي۔"

د بل کال د ګرمۍ موسم د انګلستان یو انتقامي پوځ

اندازکښې اعلان اوکړو چې" نګ دا افغانانو ته پرېږدم چې هغوئ د خپلو جرمونو په نتيجه کښې د پيدا شوي ياچاګردي حالت کښې د خپلې خوښې حکومت قائم کړي.

انګريزانو چې د افغانانو د لاسه کومه ماتې خوړلې وه، هغې خو د انګريزانو غرور او فخر دړې دړې کړو ولې د انګريزانو لاسونه مات نه شول. د لس کلېزه وخت تېرېدو نه اګاهو دکمپنۍ پوځ د سکهانو نه دوه جنګونه ګټلي وو. سنده يې خپل کړې وو، پنجاب او راجپوتانه يې قبضه کړې وُو او د اباسين او افغان پولې ترمنځه يې د پوځي اهميّت سيمه چې پښتونخوا بللې شوه د سکهانو نه لاس ته کړې وه.

دکال اتلس سوه پنځوسم نيمايئ پورې ايسټ انډيا تجارتي کمپنۍ يو مقتدر قوت جوړ شوې وو او يوازې دچين شهنشاه او د روس زار دکمپنۍ دګورنر جنرل نه په زياتي اولس حکومت کولو.

"هندوستاني بغاوت" وئيل. د دې په نتيجه کښې لندن کښې د کمپنۍ خلاف رائې عامه او حکومت اُپاریدل او د کال اتلس سوه اته پنځوسم د يو فرمان تر مخه کمپني ختمه کړې شوه او د دې ذمه واري ملکې خپلو لاسونو کښې واخستله. او په دغه ډول "جان کمپنۍ" د تاريخ يوه برخه جوړه شوه او د دې ځائې د انګلستان راج اُنيو. يا کم نه کم دا چې په هندوستان قبضې ته سرکاري شکل ورکړې شو.

د انګريزانو په بخت کښې نورې ډيرې فتحې وې. يو څو ډغرې وې ولې په پښتونخوا کښې بې د تکليف او مشکلاتو سېوا نور څه په نصيب نه شول. خو د بغاوت او جنګ تر مينځه ځلويښتو کلونو کښې هندوستان کښې د برطانيه عظمي ځمکه نوره پراخه شوه او زړې قبضې بې نورې مضبوطې کړې. ۱۸۹۷ء کښې باچاي کښې ټول ټال درې سوه دوه اويا ميلينه اولس وو، دې کښې درې سوه اته ميلينه خلق هندوستان کښې اوسيدل. هندوستان کښې بې حده خام مال وو او هندوستان کښې د تيار مال په لکونو خريداران

را بېدارېدو تر وخته پورې انګلستان د هندوستان نه
بنه زياته فائده اوچته کړې وه.

د جشن په ورځو کښې به د هندوستان مستقبل ډېر
روښانه برېښېدلې وي. په خاص توګه شمله کښې د وائسراۓ
د محل د ګړکونه به نور ډېر ښائسته به نظر راغلي وي
د ۱۸۵۷ بغاوت نه زده کړې سبق د انګرېزانو ښه زوت
شوے وو او هندوستاني يوځ د هغه راسې په يو څو
موقعو د خپلې وفادارۍ ثبوت ورکړې وو. ملک کښې امن
او امان وو هن داچې پښتونخوا کښې هم تلاره تلاري وه
پښتونخوا کښې د ۱۸۹۷ د اته ويشتم جولائۍ ګرمه ورځ وه
او چې کوم وخت بهرام خان او غفار خان داتمانزو
په بازار کښې د تاجرانو او کاريګرو د دوکانونو سره خوا
کښې تېرېدل دغه وخت نمر اوچت ولاړ وو. د جشن
يوه مياشت شوې وه. کوڅو کښې غلې غلتيا وه او ديات
تر کليوال خپلو خپلو پنو ته تللي وو. دوي به چې په لاره
د چمیار او د کولال او نورو سوداګرو سره تېرېدل

دغه شان په ارت زړهٔ اوئيل چې تاسوٴ ستړي مه شئ" ستړي مه شئ" الله موخوشحاله لره.

کيدې شي چې بهرام خان د دوی سره د خبرو اترو د پاره ولاړدې. ولې د هغه کودنه بيړه وه چې د ميلمنو غم اوکړي دا کاريګر او سوداګر نول د دهٔ پښتانهٔ رونړهٔ وو او دا ټول په دولت او رتبې کښې د فرق بارجودو برابر وو. د پښتونولی د قاعدو مطابق ددوی يو برابر دي. د بهرام خان د پارهٔ دا څه خبرهٔ نه وه که د دوی سره ناست وې ولې اوس بهرام خان بيړهٔ کښې وو او ځکه دې په دوی نا تېر شو.

بهرام خان دغه وخت هم د حجرې نه راغلې وو چېرته چې د سوات او باجوړ ميلمانهٔ وو او يو لوېې خبر يې راوړې وو. بهرام خان د ډېرو ورځو راسې دا خبره اوريدلې وه چې د پښتونخوا په شمالی سيمه کښې تکليف جوړيدونکې دې. اوس دا خبره يقيني شوې وه چې مــلا مستون سنه زيات خلق د انګريزانو خلاف راپارولي وو.

خان او د دهٔ ځوئ د انمانزو دفاعي ديوال ته اورسيدل
ماشومان د دوئ سره په ننده تيريدل او مخامخ د
ديوال سوري ته ښي خان رسوو. د پښتنو په کودونو
کښې برجونه وي چې د چرته ته دوئ د دشمن څارنه
کوي او د دې برجونو او مورچو په وجه د پښتنو کلي
داسې په نظر راځي لکه د پخوانئ زمانې بنادونه. يوه
داسې سيمه چې چرته کور د کور او خيل د خيل دشمن
وي هلته هر يو کور کښې د کونې د پاسه مورچه يا برج
جوړ شوې وي.

څنه ستړکاني هلکان چې د ديوال سرته ختلي وو
غفار خان ته آواز کړو. اې غفاره اې غفاره، دا د
دهٔ همځولي او ملګري وو. غفار خان دوئ ته اوکتل
او په خندا خندا د دوئ نه تير شو.

په يوه بله موقع مونږ ګورو چې د کلي نه بهر
بهرام خان د سيند په غاړه غاړه روان دے او د دهٔ
ځوئ غفار خان دهٔ پسې پسې روان دې. دوه هلکان

د خان سره د لري نه د آذان آوازونه راوړي. د الله اکبر الله حیر نوي دي خوږ آوازونه د خان تر غوږ و شي.

دا د ماښځین د مانځه وخت دی، خان خیل هلک ته وائي چې زه نه کوزنه ودشه، زه هم دریمې بیم او د مانځه د پاره د قبلي په لور مخ کړي.

د غفارخان پلار چرې هم مونځ نه قضا کولو که دې به سخت ناروغه کاره هم وو، کار به بې پر ینبودو او د پښې په منځ به یې د مونځ نیت اوکړو. د ده تعلق د محمدزو د قبیلې سره وو.

بهرام خان هم د دغې وادیه د نورو پښتنو په څیر عالي نسب پښتون وو خو د ده کلیوالو ته دا خبره معلومه وه چې د ده پښتون ولي. چې د پښتو نا لیکلي قانون دې د نورو خلقو نه خان له جدا ده. بدل اخستل د پښتو د معاشري او ټولني یو امر، یو قانون او اصول گڼلې شي په یوې معمولي بې عزتۍ هم د دیه د بدل قانون په حرکت کښې راشي.

اخته وي او وار په وارېږي د کورونو نه د ځلمو جنازې اوچتيږي ـ د بدل نتيجه دا هم شي چې يو دښمن د بل دښمن سره ټينګولو په غرض خپلې ټولې وسيلې په کار راولي او په دغه ډول دوي پلار په نيکه د غريبۍ او ناداري د قيد نه خلاص نشي.

قدرمن ټي. ايل پنل چې د ځش په موده کښې ښې ښون کښې يو مشن هسپتال چلوو په دې بابله ليکلي دي چې د پښتون په نکل او مازغو کښې د بدل اختو دا جذبه څومره ځله شوې ده" هغه ليکي چې د بدل نکې د پښتون په غوږ ډير خوږ لګي.دا وائي چې" دا د بدل جذبه او نکې هغه وخت نور هم خوږ شي چې يو کس خپل دښمن ته د مرګي کوزاړ ورکړي او دا بيا هم دا سوچ کوي چې خدايه د ګړي چې ځما دا دښمن څه وخت د پاره ژوندې پاتې شي چې ځما د بغض اندازه ورته اوشي".

بناغلي پنل د يو وزيري (وزير محسود) قيصه ليکلې ده د دې وزير نظر د خپلو دښمنانو د ټولسه ښاده

تا به شي او په خدای به شي. بس دومره اوکړه چې
دا نظر د يوې ورځې د پاره راشي ډاکټر صيب ليکي چې
ما د دې ړنګور نه تپوس اوکړو چې ته د يوې ورځې
د پاره په نظر څه کوي؟ دهٔ را ته او ويل چې بس
دومره کار پرې اوکړم چې خپل دښمن لوخړه کړم —
ډاکټر صيب ليکي چې ما ورته او وئيل چې الله تعالیٰ
خو په معاف کولو خوشحالين‌ي. د الله د خوشحالۍ د پاره
د عفو او معافۍ نه کار ولې نه اخلې؟ وزير جواب راکړو
چې دغه هدايت زمونږ د پاره نه دې. ډاکټر صيب
بدل، بدل، بدل ړوند وزير جواب راکړو.

چې د بدل دا سلسله کله شروع شي نو هله اُدرې
چې يو فريق بيخي ختم شي. دا د پلار نه ځوئې ته
وراثت کښې را رسي. د دې نه خلاصې هم نشته که
يو سړې د خپل دښمن نه بدل په ... وينو واخلي
نو دا څنګه سړې کيدې شي؟ دهٔ ته به څوک سړې
وائي؟ دې به خپل تمام قبيلې او ښځې نه څنګه سترګې
نيسي؟ څکه خو بدل اخستل د يو پښتون د پاره

« پرېږدي.

د بهرام خان سوچ هغه نه وو کوم چې د نورو پښتنو. د ده لویه خوبي دا وه چې ده په دښمنانو نه جوړول او د دښمنو ترېګنو او پړو جنبو نه یې ځنګ کولو. انتقام او بدل اخستل هم د ده خوښ نه وو. دې په ټوله ضلع کښې د "معاف کولو" د پاره مشهور وو چې دا د ده غیر پښتون خوی بوی ګڼلو. شو په دې وجه یعنې د معاف کولو د خوبۍ په وجه ځینې خلقو د ده د نرم طبیعت نه فایده اوچتوله او دې به ېې بې عزته کولو ولې د بهرام خان دا پخه عقیده وه چې د الله تعالیٰ په نظر کښې عزت او درناوي د هغه چا د پاره دي چې ځوک د ارت زړه نه کار واخلي، دښمنان معاف کړي او د رولړونړلونو سره د روغې جوړې او مینې ژوند تېر کړي او د هغوی کمزورۍ او زیاتي معاف کړي. او برداشت یې کړي.

د بدل اخستو په ځای معاف کول او هېرول د ده

نشه د خيال او فکر ته داسې عملي شکل ورکړې وچې ډير ورته ګوته په خوله پاتې شول.

د بهرام خان دې رويې د ده کليوال ډير پريشانه کړي وو — دا څنګه بنيادم دې هغوی به تپوس کولو؟ خو هغوی ته دا هم پته وه چې بهرام خان د بادشا او بهرسې جوګه انسان دې او په دا وجه به کليوالو خپل بچت رقمونه د ده سره امانت کول. او د ده نه به يې څکه څه قسم رسيد نه اخستو چې هغوی ته دا علم وو چې بهرام خان يو سوچه انسان دے.

د انګلستان د حاکمانو هم دا خان خوښ وو دلې چې ده کښې کينه او نفرت نه وو. ده د انګريزانو خدمت هم چرې نه وو کړې لکه څنه خانانو به چې د هغوی منتانې کوله او د هغوی په نظر کښې به يې د خپل قدر او درجې زياتولو د پاره د هغوی جائز او ناجائز حکمونه منل. خو بهرام خان به دومره کول چې د انګريزانو لحاظ به يې ساتلو. انګريزانو به

دَ انګریزانو دا باور وو چې بهرام خان د دوی نوموړنه د بدلحاظۍ یا د نفرت له وجې غلط نه اخلي.

بهرام خان موږ اوکړو او کور ته روان شو چرته چې د ده تېږ او ځوی د ده انتظار کولو.

داخله! غفار خانه ډوډی اوخوره، د ده مور دګه ته اووئیل او عبدالغفار چرپل اووهلو او د ډوډی د پاره تیار شو ــــ باچا خان به په مزه مزه خوراک کولو چرته بیړه کښې به نه وو او چې کله دې لوی متر د پښتو مشر جوړ شو او دې به چرته په دوره لاړو نو زیات کوشش به یې دا کولو چې په چا میلمه نشم او که چا به ورته په ډوډی زیات خرڅ اوکړو نو په دی به خپه کېدو او دا به یې فضول خرچي ګڼله. ده به ساده خوراک کولو او چې چا به دې دومره په ساده خوراک اولیدو نو هغوی به دا خیال کوو چې ګني دې کنجوس کوي خو د هغه مقصد

چې کله دې هلک او پلار ېې ډوډۍ خوړله د غفار خان مور ته ځنګ ته ناسته وه او د کلي د حال احوال تپوس ېې کولو — پښتنو کښې د زنانه ؤ د پردې سخته پابندي کوله شي د پردې مقصد دا دې چې زنانه د سړو په مجلس کښې نه کښيني او نه د سړو په کاروبار کښې ګوډې وهي د غفار خان لا ملګرتوب نوب کښې دا خبره ناخوښي وه چې د ده مور د خان نه ګوښې ناسته وي. ده به اکثر داسې څه نوې خبره کوله چې ده به اوريدلې وه — خو نن د ده پلار داسې يوه خبره اوکړه چې په اوريدو ېې د غفار د مور رنګ زيړ شو — دا د يو بل جنګ خبر وو. دې ته د جنګ يره وونکې ناوان او تباهۍ او بربادۍ معلومه وه. دا څه چې هر يو پښتون ته د دې خبرې علم وو. چې د جنګ قيمت څۀ دي؟

د غفار خان مور يوه پاک لمنه ښځه وه — دا چې

سوچه او د پښتونو ملک دی. او د نورو ملکانو په څیر نه دی. د غفار خان هم د خپلې مور سره بې کچه مینه وه.

بهرام خان به لید ل چې ځلمی غفار ډیر آزاد طبع دی او ملګرو ګنې یې داسې ملګان هم شته چې د هغوی سره هیڅوک ملګرتیا نه کوي ـ دا د لاړو کوڅو صفا کوونکی بنګیان وو. غفار به ډیر وخت د سپند په غاړه تیرولو او هلته یې خان له مشغولیت جوړ کړی وه کله به داسې اُشول چې بهرام خان به د غفار د پاره بې صبره شو نوخپل ترور به د تسله ورکړه چې ته د غفار خان نه بې فکره شه، هغه یو مضبوط او بې بد د ملک دے هغه سم باچا دے ـ مور به یې بنه په پاور سره او وشیل او بهرام خان به اوری چې بنه ده چې ته داسې وایې داسې به وي.

هغه ورځ ماسپخین/ مازدیګر بهرام خان ته دا خبره را او رسیده چې پرون نه بل پرون قطب کښې جنګ شروع شوی دے. ولاندینی خبرونه خو ډیر واضحه هم نه وو ولې د براد ښکیرنې خبرونه نه وو.

ملکې پوځ ښې کس کوږ کړې دي.

د فرنګي فوځ د پښتنو مقابله او نه کړې شوه او په مخه شول. د ملا مسنون دا خبره رښتیا کېده چې د دوی د خلاصي ورځ را نزدې شوې ده.

دریم باب

# دَتیراه دَوادی تباهي

## جولائي، دسمبر ۱۸۹۷ء

زموږه مجبوري دا ده چې زموږه صوبه د هندوستان لاره ده. او په دا وجه موږ ناوان کېږي شو. (حضرت باچاخان)

" په اوومه جولائي د پښتونخوا نه جنګي نامه نګارلند کښې خپاو لوستونکو ته اُلیکل:

یو بدحواسد تیلې ګراف اېربېنټ په منډو سر تسو او نوښیار چاونړی کښې هې د پولسي بنګال لانسر کسان را بیدار کړل ده دوی ته دا خبر ورکړو چې هله رایاغی د ملاکنډ په ګېرژن په زرګونو قبائل ورختلي دي.

ارنیول نوښیان به د ملاکنډ به لور سمدستي روانیږي"

دَ هندوستان نورته حسابونه کښې یو جونیر افسر وو. دې د جنرل بیډن بلډ لاندې ملاکنډ فیلډ فورس کښې د جنګي خبریال په حیث شامل شوې وو دا فورس دَ جنګ میدان ته په دې غرض لیږلې شوې وو چې دَ باغي قبائیلو نه په زړهٔ پورې بدل واخلي او سبق ورته ورکړي.

د چرچل د تحریر نه د تاج د جنګونو د حکمت عملۍ بنه صفا وضاحت کیږي چې کوم وخت بدحاله قبائیلو د ملکې د توپو اود نه ځان ورلاندې کړو، دې ځلمي افسر د لندن ډیلي ټیلي ګراف لوستونکو ته د مړانې او همم جوئي قیصې ورلیږلې.

زهٔ چې کومه قیصه لیکم دَ دې تعلق د پښتونخوا د جنګ سره دې. د باچاهت د قسمت فیصله دنتیجې سره تړلې نه دي خو بیا هم دا قیصه به ددلچسپۍ نه خالي نه وي.

د رانلونکي جنګ به پایله افواکاني ثودي شوي.

حقیقت نه د مبالغې تشکل ورکړې شي او بیا د دې غیر اهم حقیقت ځیره دومره ورانه شي چې د پیژندګلو نه بهر شي او بیا د دې په زړکونو غیر منطقي او خیالي نتیجې راښکلې شي او دا بیا د حقیقتونو په ځیر خورولې شي.
او په دغه ډول د افواهګانو جوړولو، خورولو او ځ دې نه منونکو نتیجو دا کار روان او جاري دي.

خو د دې افواهګانو او د دوغه او بې حقیقته قیصو کښې څه نه څه اصلیت ضرور پټ دي. چې څنګه د کال ۱۸۹۷ء د جولائي میاشت په تیرید و شوه، د ملاکنډ بازار د لیوني فقیر د معجزو د قیصو نه ډک شو.

د اسلام د فتح ورځ نزدې شوې ده یو طاقتور سړې د دیه د شریعه د پاره را پاڅید لي وو. ویلې به شول چې انګریزان به جارو کړې شي او چې نوې میاشت را بوسیره کیږي یو انګریز به پاتې نه وي دې لیوني او سنډ فقیر په غرونو کښې یو طاقت ور پوځ پټ کښینولې دې. او چې کله دخت راشي دا پوځ

کښې به دغه د نیلي ګراف ځلمي ابریښم به دغه خبره هک بک شوې وي ولې چې ۱۸۹۵ء کښې د چترال د شورش نه پس پښتانه خاموشه وو. او صرف یوه مبا شت وړاندې ده لوستي وو. چې چکدرې ملاکنډ او پیښور کښې پښتنو د ملکي په جشن کښې ګډون کړې وو.

خو دې یوه کسان به د جولائی په دغه ما ښام د پښتنو د تشدد په پیښه حیران شوي نه دي ولې چې انګریزانو په پښتونخوا کښې په کومې پالیسئ عمل کولو د هغې غوښتنه داسې حمله وه. د تعجب خبره خو دا ده چې د انګریزانو دغه پالیسئ د پښتنو د پاره نه وې. دیو دښمن د پاره وې. پښتون د انګریزانو دښمن وو ځکه چې د انګریزي پوځ خپې چرې هم په دغه سیمه کلکې شوې او نه به شوې وې.

د کال ۱۸۰۷ء راسې چې کله نیولین د روس د زار الیګزینډر اول سره په تلسټ سیند کښې یوې کشتۍ کښې ملاقات کړې وو او په هندوستان یې د روس

دې سره د انګلستان د خارجه دفتر دا خیال پوخ شوې وو چې روس په چل چل هندوستان ته رارسیدل غواړي ۱۸۶۵ ء کښې د زار فوځ تاشقند او نیوو بیا یې سمرقند ولقه کښې واخستو او ۱۸۶۸ ء کښې یې بخارا د روس طفیلي اوګرځوله دې سره د روس او انګلستان تر مینځه په یو بل د برترۍ موندلو د پاره ګرینې ګیم ښه په زور کښې شروع شوې وو.

که ۱۸۴۲ ء کښې په کابل کښې د لومړنۍ ماتې خوړو نه پس انګریزانو د افغانستان د پښتنو قبیلو نه ځان په عزتمنده فاصله کښې ساتلو. خارجه دفتر کښې د "کلوز بارډر فکر" طرفدارو په کلونو کلونو ډېر په کامیابۍ سره دا دلیل وړاندې کولو چې د افغان قبائلو سره د تعلق ښه طریقه دا ده چې دوی ځان ته یوائې پرېښودلې شي. د انګریزانو دا یو کلک خواهش وو چې د افغانستان سیمه دې د راج او روس تر مینځه د بفر کار ورکوي.

خو د خارجه دفتر د "فارورډ فکر" طرفداره حاکمان

لاندې ساتي او د روسي سازشونو نه يې هم په امن ساتي. د دوی د دليل دا ؤ چې د هندوستان دتحفظ د پاره پښتنو قبائلو کښې لږ ډير اړې کړې او نشه د پيدا کول څه زيات قيمت نه دې.

کله چې کال ۱۸۷۴ء کښې قدامت پرست د واک اختيار خاوندان شول، د فارورډ فکر پاليسي دانګلستان سرکاري پاليسي اُکړځولې شوه. لارډ لټن نومې وائسرائ اُټاکلې شو. دۀ سمدستي د هندوستان د پولو په براخه کولو زور پورې کړو. د دۀ هدف دا ؤ چې دهندوستان پوله د افغانستان په سيمه کښې کوه هندوکش پورې اوغزولې شي. لارډ لټن ډيرش زرو پوځيانو ته په کابل د ورختو فرمان جاري کړو. دې سره د افغانستان امير دې ته مجبوره کړې شو چې د خيبر د درې او د نورو اهمو ځايونو واک اختيار انګلستان ته ور اوسپارې دۀ په کابل کښې يو سفير هم اوټاکلو او دې سفير ته دا کار حواله کړې شو چې دَ افغانستان د خارجه پاليسۍ په باب کار خل

دوباره نشي. سر لوئين کيوګنري د کال ۱۸۷۹، په جولاۍ کښې کابل کښې سفير اوټاکلې شو. د ده د حفاظت د پاره د انياؤ کسانو يوه دسته مقرر کړې شوه. په دريم سنمبر کابل کښې د انګلستان په ريذيډنسي حمله اوکړې شوه. او دلته موجود ټول کسان اووژلې شول. د انګلستان دوئيم پوځ اکتوبر کښې په کابل قبضه اوکړه او داخل د انګريزانو طرفداره امير د کابل په تخت کښينولې شو او په دغه ډول افغانستان په خپلټ کښې د ايمپائر يوه برخه جوړه شوه.

خو د فاروډ فکر لرونکو د ويړې غوښتونو د پاره دا هم کافي نه وه. هغوئ دئيل چې د افغانستان او هندوستان ترمينځه د ټولو واضحه حد بندي نه ده شوې او په دا وجه بې شبه او مؤثره دفاع نه شي کيدې. دوئ وئيل چې ضرورت د دې خبرې دې چې انګلستان خپله دا ذمه وارې ترسره کړې چې

هند ترمنځه د غرونو سلسله وه. دا اوچت او دنګ دنګ سنګلاخ غرونه دي چې منځ کښې یې تنګې لارې دې او په آسانۍ یې دفاع کېدې شي دې لړکښې یوا ځې مسئله دا وه چې دا بفر سیمې د پښتنو په علاقه کښې وې. د فارورډ فکر ښکاریانو دا هم نه غوښتل چې د پښتنو غضب ته د تیلې ورته کړې شي نو د ایمپائر د ساتونکو دا خیال وو چې خو ښه یوه کیدې شي او هغه دا چې د انګلستان د قیمتي غمي یعني د هندوستان دفاع دِ په هر قیمت اکړې شي.

د کال ۱۸۹۳ء په خزان کښې هینري ډیورنډ کابل ته په دې غرض اولیږلې شو چې د افغانستان او برطانوي هند ترمنځه د پولې د ښکلو په بابله خبرې اترې اوکړې. د دې په نتیجه کښې د پښتنو زیاته سیمه ښه په مؤثر ډول انګلستان ته اُسپارلې شوه. دا سیمه په تاریخي

ددې نصفې سره ماته دومره تاوان نه دی رارسيدلی څومره چې تاسو تاوانی شوئ. ده د مايوسۍ په عالم کښې وائسرای ته او ليکل چې که تاسو پښتنې قبيلې ځما د واک او اختيار نه اوباسئ نو دوی به نه ځما په کار راشي او نه به ستا په کار راشي. تاسو به تل تل ددوی سره په جنګونو اخته وئ يا به ورسره نور څه تکليف کښې ککړ وئ او دوی به هميشه د تاسو تالان کوي ځکه چې پښتنو د خپل سر د پاسه سر نه مني.

انګريزانو دا خبره په زبردستۍ جوړه کړه او دکال ۱۸۹۳ په دولسم نومبر ئې د امير لاس ليک په يوې داسې لوظنامې ترلاسه کړو. چې د هندوکش نه د بلوچستان تر مغربي حدودو ټوله علاقه انګريزانو په اختيار کښې راغلي او دې سره د پښتنو سره د انګريز جګړه ناګزيره شوه او دا يوه داسې شخړه وه چې د راج تر آخرينو ورځو پورې جارې پاتې کيدونکې وه

د دې کړنې په نتيجه کښې پښتانه بندوبستي او آزادو قبائلو کښې ويش کړې شول. انګريز دغه سيمو کښې دخيلې

شو خود آزادي د جذبې نه ډکو پښتنو په غرونو او راغونو کښې د قلاګانو جوړ بدل او پوځي کېمپونه قائيمول او د دې په نتيجه کښې د راج واک او اختيار ډېرې مودې پورې زغملې نه شو.

کال ۱۸۹۱ء کښې د اکازو خلاف نورو غرونو ته او ۱۸۹۴ء کښې وزيرستان ته مهمونه لېږلي شوي وو د کال ۱۸۹۵ء جنوري کښې چترال لمبه شو او هلته ښځلس زره پوځ اولېږلې شو د سوات په ملاکنډ او چکدرې کښې قلاګانې جوړې کړې شوې څو دا سيمې هم ښغسې په نوم د انګريزانو په ولقه کښې وي. آزاد قبائل په دې خبره پوهېدل چې دا نوې قلاګانې د منتقلې قبضې علامت دې.

دوه کاله خو دوي کښې غصه اوړېده راوړېده او آخر د کال ۱۸۹۷ء د ګرمۍ په ړومبنو مياشتو کښې ملا مستون په شمال کښې د کليوالو علاقو دوره شروع کړه. ده قبائلو ته د دوي بې عزتي ور په ياده کړه او په دوي کښې بې په دې خبره جوش

دد چې د جهاد وخت ـ عې دې دې جنګ سره
به نګریزان د دې خاورې نه اوويستلې شي او د
دزیر صدو نه پس به د دلي په تخت بیا د اسلام
راج قائم شي ـ ولې چې د مغل د تخت دیارلس
کلنې وارث ماموندلې دې او دا به د دلي په تخت
یو میاشت کښې د ننه کښېنولې شي. ملا مستون
د چرچل لیونې فقیر ـــ د خپل سر نه د نکلي د لسو
زرو پښتنو یو نوځ تیار کړې وو.

د جولائی په یوه توره شپه لوګي اور شو او پښتنو
توري چاقوان او د ټوپکو سره د ملاکنډ او چک
درې په قلاګانو او نور پوځي ځايونو په يو وخت
توده حمله اوکړه. د دې حملې سره انګريزي پوځ
اوېرېدونو د لږ وخت د پاره انګريزان او سکهان
د توپو او نورو ټوپکو سره ښه په بهادرۍ اوجنګيدل
ټوله شپه وخت په وخت د قبائلو حملې پسته کړې
شوې د انګريزانو او سکهانو له اړخه د توپچي زنبت

ګولۍ ته ځان ور واچولو. تاوان او نقصان هیڅ معنی نه لرله. وخت د دوی ملګرې وو. په الله یې پوخ باور وو. دوی ته دا حقیقت هم معلوم وو چې د انګریزانو نه شمیر کښې زیات یو. د ملاکنډ او چکدرې په قلاګانو دې حملو کښې په سوونو پښتانۀ د توپو او ټوپکو د ګولو په باران کښې مړۀ شول. خو د دوی د پاره مرګ څه معنی لرې؟ بس دا چې د انګریزانو خلاف جنګ کښې مړۀ کیدل جنت ته رسیدل وي.

تیاره په سحر کښې بدله شوه او قلاګانې لا لاسه پورې د انګریزي نوځ په ولقه کښې وې د قلاګانو نه اخوا دیخوا ټول میدان د پښتنو د مړو نه ډک پروت وو خو دوی خپله حمله لا جاري ساتلې وه. د دوی حوصله د ماتیدو نه وه.

او په دې دوران کښې یو عجیبه کار اوشو. د مرګا د لغړو غرونو د پاسه نه د راج پوځ د وسلې سره راښکاره شو. قبائلو چې په دغه لور اوکتل نو حیران پاتې شول او

خیال وُو کنې چې دغه قلا کښې کوم پوځ پروت دې بس
ـ سرکار سره هم دغه هومره قوت دې. دوئ وئیل چې
"دا کسان او دوژلي نسي نوکار شوې دې"

دوئ ته څه پته وه چې د ټیلي ګراف د تارونو په ذريعه
د هندوستان د جنوب نه د مدد دپاره پوځ روان شوې
دې او نه دوئ ته دا علم وُو چې د دوئ د حملې علم
ټولې نړئ ته شوې دې. او دا چې پوځي افسران د اوه
زر میله لرې نه د سمندر او خمکې په لار په غرونو
کښې د کیمپونو او قلاګانو په لور روان شوې دي او دا
چې اوږده اوږده ریل ګاډي د وسلې او نور سازوسامان
او د پوځیانو نه ډک د محاذ په لور روان شوي دي.

دې ناپوهه قبائلو ته د نوي تهذيب د حاس طبیعت
په بابله هیڅ علم نه وُو دا خو داسې تهذیب دې چې په
نکوني څیرنه ښې د نړۍ هر کوټ خبر شي.

دوئ ته پوائي د ملاکنډ په دره کښې د قلاګانې

سربندت بلد د ټولې کاروايي د نګرانۍ کولو په غرض د خپلې عملې سره په پټې جوړه قلا ته ورننوتلي وو. د دې ځايه د جنګ ټول ميدان ښه صفا په نظر راتلو په هر لوري او د دې هرې يوې پټې نه د ودځې په رنړا کښې دښمن ښه ښکاره ښکاريدلو وو. لاړه پراتستي وه او څکدره نيج کړې شوه. انګريزانو يوه ډيره شانداره او عظيمه کاميابي موندلې وه. سکه او انګريز په دې موقع د خوشحالۍ نه جامو کښې نه ځائيدل

د بنګال پولسي لاښرو په واديه کښې د وديږو. پښتو او د غر په پکو کښې د دښمن نيوکه شروع کړه. دښمن نه تيښته وو او مضبوطو اس سورو دا را نيول په يو قبائلي هم رحم او نکړې شو او څوک به چې په لاس راتلل هغه به په هغه دم پريکړې شو او په دغه ډول د وديږو ښنه پټي د دوئي د مړو نه ډک شول. دا يو خونناک او يره وونکې سبق وو او يوه داسې پيښه وه چې د سوات او بنير اولس به بيې چرته هم هيره نه کړې شي.

دغه وخت اپريدي د خيبر په دره را ننه وتي وو او نور ورانه‌ي سميل کښي _ اوړکزو د کرمي په وادۍ حملي شوره کړي وي. د آکست اخره پوري پښتونخوا کښي عام بغاوت شروع شوي وو. او د خيبر دره خپله هم د انګلستان د لاسه اووته.

په پنځه ديرش زره کسانو مشتمل يو فوځ د شپږنو، ميداني توپو، د مشين‌ګنو يوې دستې او ساز او سامان نه ډک ديرش زره څاروي په ځواب کښي د جنګ ميدان ته اوليږلي شول. دا د اپريدو د وطن زړه تيراه په لوړ په حرکت کښي وو. د دې نه اګاهو هيڅ يو غير ملکي فوځ دغه سيمه ته نه وو رسيدلي. د اکتوبر تر مينځه داګها تي فوځ په لاره جنګيدو، جنګيدو کښي د تيراه ميدان وادۍ ته رسيدلي وو.

دغلته انګريزانو ته د اوړو او د نکو څوکو په مينځ کښي يو روت جنت په لاس ورغي. دا د مانړو او الوچو، د سېبونو او انځرانو او سنګترو د باغونو سيمه

یو انګریز نامه نګار په دې بابله اولیکل چې د اکتوبر
په یخه هوا کښې دا وادۍ داسې پر سکونه په نظر راځي.
لکه د خپل خوږ وطن انګلستان یوه نظاره وي" ده لیکلي وو
چې په دنو بوټو د خزان اثر ډیر ښائست پیدا کړي
دې او دې ته په کتو سړې په نه څه وخت کښې خپل مورنۍ
وطن ته اورسي" ده وړاندې اُلیکل چې" یوکس دا تصور
کولې شي چې د سپرلي د موسم فصلونه راختلي وي او
دا رنګینه وادي د یو سر نه بل سره پورې تکه شنه ولاړه
وي نو دا به څومره ښائسته ښکاري. دا د جنت په څیر
ښائسته ځائې دې چې پښتانه شاعران نو نه جوش او
جذبه حاصلوي او د شعر جامه ور اَچوي"

خو د دې سزاوارې مهم هدف سزا ورکول دي. دا
نظارې او تکه شنه ښائسته وادي شنډه ول دي چې دا
دې استوګنو ته د فصلونو ورکولو جوګه پاتې نشي او
په دغه ډول دوی سرتېتولو ته مجبوره کړې شي.
خو د اُمیدونو برخلاف اپریدو دا کار اسان کړ و دوی

انګرېزانو وړاندې د غلې په ذخيرو لاس پورې کړو او څهٔ چې په لاس ورتلل هغه بې قبضه کړل باغونهٔ يې لغړ کړل ونې بوټي بې اوډهل او ولاړ فصلونه يې تباه کړل.

چې دوئ به کله وادئ کښې په کلي ورننوتل پوځيان به د خانانو په کورونو ورخوشي شول، قالينونه، فرنيچر او د سرو او سپينو زرو کالي به يې خپلو کېمپونو ته يوړل او چې کوم شيان د وړو نه وو هغه به يې د کلي منځ ته راوړل او تېلې به يې ورنه کړو او په دغه چل بې کلي خاورې ايرې کړل او د اوبو زهرجن کولو په غرض بې د ګرانائټ د کانړو چک چک ټکاړي راوستل او کويان يې ترې چک کړل.

کله کله به څنه پوځيانو د زياتې حوصلې نه کار واخستو او په دغه دوران کښې به د قبائلو د سمدستي حملې ښکار شول او سر به يې اُخوړو. انګرېزان د مرګ ژو بلې

پاتې شو. او نه يې هغه كشش پاتې شو. چې پښتو شاعرانو يې ورته كتل او شعرونه به يې جوړول. لاندې وادي تباه او برباده كړې شوه او برسره د غرونو په سر تيانګي ماشومان د سختې يخني د لاسه دل كيدل شورو شول او په دغه ډول خانان د روغې دپاره د مهاتي فوځ په هيله كوارټر ورمات شول. دوئ د روغې جوړې شرطونه اومنل. دوئ درې سوه ټوپكو او ديرش زره روپئ جرماني وركولو ته سر كينبود.

د دې نه آګاهو چې د يخنۍ د يخو هواګانو طوفانونو په وجه په درو تګ ناممكن شوې وو. انګريزان په دسمبر كښې د سماناس په لاره د وادئ نه سمدستي اووتل خو د اپريدو بخت خراب وو ولې چې د دوئ په سر خو نه سيورې پاتې شوې وه او نه ورسره د خوراك څښاك ذخيره پاتې وه او د دې نشت له كبله ډير ماشومان او بوډاګان مړه شول.

اوجرمانو په تشکل کښې بس د دمره څه راټول کړل چې په ټم روان پوځ د يوې هفتې خرچ د پاره کافي کيدې شو خو د دې ټمونو په نتيجه کښې دوئ دداتلونکې پنځوسو کلونو د پاره د پښتنو دشمني د ځان سره يقيني کړه۔ پښتون نه خو بې عزتي برداشت کوي او نه بدل پريږدي وائي چې" پښتون سل کاله پس هم بدل واخلي نو وائي چې ډير زر مې بدل واخستو" مطلب دا شو چې بدل اخستو کښې په ده ناوخته کيږي نه۔

لس کلونه لا تير نه وو چې انګريزان د وزيرو او اورکزو د بغاوت سره مخامخ شول او دوئ يو وارې بيا تيراه ته ورد ننه شول. که د چرچل دادې ورکوونکو تحريرونو د انګريزانو د پاره د پښتونخوا په سيمه جنګونو کښې خوند او افسانوي رنګ پيدا کړو، څنه لوړ انګريزان داسې را بر سيره شول چې هغوئ بنه په سره سينه د پښتونخوا په بابله د انګريز سرکار د پاليسئ جاج واخستو دوئ کښې هندوستان کښې ميشته يوه انګريزه زنانه

فوت سره اوکړه دي او یکی چې" موږ د خبره په چټو چغو اوکړه چې د پښتون قام سره زموږ څه جنګ جګړه نیشته خو بیا هم موږ د هغوئ کوډونه سني کړل د هغوئ فصلونه مو تباه کړل، د هغوئ څاردي مو پټ کړل، د هغوئ دولت مو لوټ کړو، د هغوئ مزاحمت بغاوت اوکنځولي شو. او د هغوئ سرې مو پانني کړل او موږ د هغوئ زنانه او ماشومان د دې د یاره په زور او جبر د کوډونو نه اوویستل چې هغوئ د وادړې په یخ کښې مرګ ته اُسپارلي شي.

د شپې په تیاره کښې د درد او غم نه ډک ژړیا، زموږ ترغوږو کیږي او چې د پښتنو سره څه زموږ په نامه کیږي دا زموږ سرونه د شرم نه ټیټ کړي د پښتنو په تن نغنږ اوتن کیږي ماشومان زموږ د غند نه د پاره کاڼي دي.

په سر سرزوري زنانه په چغو چغو زموږ خلاف نعرې وهي. دا بې ځایه پرانه سخت شوي مړې د کولو په تاؤ نور شوي کوډونه، دا په وینو سره دواړو

تشو څو خپل ماشومان پخپل تېر پورې کلک نيولي دي او ورسره خندا کاني کوې څو د يخوا خپلو پښتنو څوبند و نوري نه څو پام اوکړئ چې غيږې يې تشې نورې شوې او دکلونو په څېر ماشومان يې دل تسول پښتون هم د خپل ماشوم او خپلې نبځې سره هم داسې مينه کوي لکه څنګه چې ناسو کوئ. هغه هم يو خاوند دې او ستاسو په شان يو پلار دې د هغه د پاره هم خپل کور د جنت ټوټه ده او خپله خاوره ورته مقدسه ده هغه تاسو ته د خپل وطن شوي کور کنډرو او تالاترغا شوي ځمکې نه نعرې وهي، آوازونه درکوي. د هغه سره انصاف ستاسو په لاسو کښې دې"

څو د انګريزانو د پاره هغه لاره پرېښودل ګران وو په کومې چې هغوئ تګ شورو کړې وو. د فارورډ پاليسي عملي کولو لړ کښې هغوئ په داسې سيمو ورګډ شوي وو چې په مکمل ډول د هغوئ سرکوزي کول ګران وو. د پښتنو غرېزې سيمې په مستقل ډول قبضه کول د انګريزي راج د پاره يو ډېر زيات

دوی د نظره پری ایستې نشي او دغه وجه ده چې دوی د انتقامي ممونو ښکار شول چې پښتانه به نور هم لمبه کړل او انګلستان کښي د ننه به لیبرل فکر لرونکی خلک خفه کړل دا خبره پده چول هم کیدی شي چې انګریزان د خپلو شهنشاهي منصوبو او ارادو نپلیان جوړ شوي وو.

دغسې د وکټوریه د دائمند جوبلي رجشن) نه یو څو میاشتې پس د ځنه انګریزانو په فکر کښې د انګریز راج په حوالې سره بدلون راغلي وو. د امپایر د پر قید دنکي خیرې یو نک توس اړخ هم وو. چې د پښتون سخت مزاحمت نرنه برده او چنه کړې وه او دغه شان په جشن کښې د راج خندېدونکي خبره چرې هم په موسیدو او نه لیدلې شوه.

## ځلورم باب

# د ګائیډ زکنبي کمیشن پیشکش

## ۱۹۰۷ء ۔ ۱۹۰۹ء

رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته دا سبق راکړو
چې هغه کس ریښتونې مسلمان دې ځوک چې د الله تعالیٰ
د مخلوق د خوشحالۍ او فائدې کار کوي۔ په خدایٔ
پاک د عقیدې دا غوښتنه ده چې سړې د انسانانو سره
مینه کوي" (حضرت باچاخان)

قدر مند ښاغلي ای۔ ایف۔ ای ډګرام پینبور کنبي د ایډورډز
میموریل مشن هائي سکول هیډ ماسټر وو۔ ښاغلي ډګرام

اولس سره مینه وه.

مشن سکولونو کښې به ځلمو پښتنو ته انګرېزي، سائنس او نور علمونه په دې غرض ښودلې شول چې دوئ د پنجاب یونیورسټۍ د میټرک د امتحان د پاره تیار کړې شي. دلسم جمات پاس سکولو نه ددستو به دوئ د هندوستان حکومت په دفترکښې د کلرک په توګه ملازمت کړې شو د دې نه علاوه د ملازمتونو دا لاره پرانستې وه. د مسلمانانو دناخوښۍ باوجود هم دې مشن سکولونو کښې د بائبل سبق ورکوې شو.

ډاکټر وګرام به د پېښور د مشن هسپتال نګراني کوله او د ده رور به د هائي سکول څارنه کوله. انګلستان کښې د دوئ نېږ د دې ادارو مرسته کوله او تر دا چې قابلو او لائقو پښتنو طالب علمانو ته به ئې د خپله جیبه وظیفې هم ورکولې.

غفار خان چې د شپاړسو کالو یو تنند او د مضبوطې ارادې ځلمی وو د کال ۱۹۰۷ء په سپرلي کښې مشن هائي سکول پېښور کښې یو طالب علم وو. د ده مشر رور خان

سکول کښې (مشن هاې سکول پېښور) د اتمانزو دوېم طالب علم وو او د اتمانزو د ملايانو صاحبانو دا خبره خوښه نه وه دوئي به د انګريزانو د سکولونو غندنه کوله ولې چې دا د ملايانو د مکتبونو مقابلې کښې ډو چرته به چې يواځې مذهبي تعليم ورکولې شو. ملايانو صاحبانو خپلو شاګردانو ته يوه سندره زده کړې وه. دا به د مکتبونو هلکانو په سړکونو او په چولو چنو کښې په چغو چغو وئيله. سندره دا وه.

سبق د مدرسې وائي    د پاره د پيسې وائي
جنت کښې به يې ځاې نه وي    دوزخ کښې به غوپې وهي

شورو شور کښې د اتمانزو ملايانو دا قطعي فيصله کړې وه چې هغه مور پلار چې خپل هلکان مشن هاې سکول ته لیږي، د هغوی سره به تعلق ختمولې شي. د بهرام خان نه اګاهو بل څا د ملايانو د مخالفت او جګړې خطره نه وه اخستې خو د خان لوې زړه وو او دا ئې نه غوښتل چې د دۀ د بچو په تعليم کښې څوک مداخلت اوکړي.

اوېږې څه ضرورت نشته. پرېږده چې دوئ انګرېزي زده کړي خو چې د عيسايانو مذهبي کتابونه او نه لولي ولې چې هغوئ خپلو کتابونو کښې ګوتې وهلي دي. ردو بدل يې په کښې کړي دي او دغه کتابونو لوستل د مسلمانانو دپاره جائز نه دي.

غفار خان په دې سکول کښې خوشحاله وو چرته چې د ده ورور هم طالب علم پاتې شوې وُو. ده نه چې د عيسائي او مغربي اثر لرونکي سبق ـــــ او په خاص ډول انګريزي ثقافت ښودلې شو ده پرې څه بد نه منل. امتحان کښې به دا سوال په باقاعده ډول کولې شو چې هغه فائدې په ګوته کړې کومې چې انګريزي راج د هندوستان اولس ته ورکړې دي. لکه هغه سړکونه چې انګرېزانو جوړ کړي وو، د سړکونو د پاسه د اوسپنې درانه درانه پلونه د تار او ټيلي ګراف انتظام، سکولونه اګر چې د دې سکولونو کښې پښتو ښودلې نه شوه او دا خيال وُو چې د تعليم ژبه نه ده، ريل ګاډې، هسپتالونه. نوځ چې د انګرېز

د حکمرانۍ په ځای آزاد ژوند خوښوي. دا د هغه نه سیوا په آزادۍ مئین دي او لکه څنګه چې د پښتونخوا په سیمه د انګریزانو او پښتنو تر مېنځه د جګړو نه دا حقیقت ښه ښکاره شو چې تر یېا ټول پښتون قام د غلامۍ د ژوند مقابله کښې د نیستۍ او مشکلاتو ژوند غوره کړو او لکه د ماشومانو په شان چرې هم د انګریزانو په مم تېر نه وتل.

غفار خان د هغه کلیوالو نور شوي او نچوړ شوي ځوانه چرې هم نه وُو هېر کړي. څوک چې هغه سخا کړمه کښې د انګریزانو سره جنګېدلي وو. د دې جنګ نه پس په جړې کښې هغه حال نه وو کوم به چې د جنګ نه وړاندې وو. دېر وخت پورې خلکو سندرې نه وئیلې او نه به د شعر او شاعرۍ محفلونه لګېدل. دوی به د چائیو په پیالو انګریزانو ته بد رد وئیل او غفار خان به د انګریزانو خلاف د کلیوالو د کرکې او نفرت ډکې خبرې اورېدې

خو د دې نه پس ډېرې تبدیلۍ راغلي وې. هلک

ده به د انګریزي نوځ د نظم و ضبط او حوصلې ستاینه کوله. غفار پیدائشي جنګجو وو. حقیقت دا دې چې هر یو پښتون پیدائشي جنګجو وي.

ده د خپل استاذ عزتمند ډګرام هم د غه هومره قدر کولو څومره چې ده د خپل پلار کولو. غفار خان کتل چې بناغلي ډګرام یو سخت ښکېن خو سخي انسان وو او اګر چې دې غیر ملکي وو، د سمندر پورې نه راغلې وو. خو ده به چې خپل سکول کښې د پښتنو طالب علمانو د مستقبل جوړولو د پاره کوم کار کولو او د دوی د پاره به څومره فکر مند وو. د غه هومره د هغوی خپل مور او پلاران د دوی د پاره فکر نه کولو. دې دوران کښې د غفار خان په ماغزو کښې یو خیال را پیدا شو چې ولې دې زه سکول کښې دیره نشم. چې د ډګرام سره کار اوکړم؟ خو ګائیډز هر څه بدل کړل.

ګائیډز په پښتنو او سکهانو مشتمله یوه رساله ده.

اضمه کوله د کاپیډنز یو افسر د انګرېزي برابر وي ـ دا
خبره ده د خپل نوکر او ملګري باراني کاکا نه څو څو
واره اورېدلې وه. غفار خان شپږ فټه او درې انچه
دنګ وو. او وزن يې دوه سوه پونډو نه زيات
وو. باراني کاکا به ده ته وئيل چې انګرېزان خو به
تا لاس په لاس د فوځي افسر په حېث واخلي.

غفار خان دا وخت د لسم جماعت طالب علم وو
دا يې سکول کښې اخري کال وو. ده د لسم جماعت
نيم امتحان ورکړې وو چې ده ته اطلاع اوشوه چې
تا نه کميشن ورکړې شوې دې. ده ته د ډيکو وټنګ
افسر سره د ليدو هدايت شوې وو. په دغه خوشحالۍ
کښې د امتحان په نيکي نيمګړې پرېښود.

باراني کاکا په دې خبره چامو کښې نه ځائيدو
او د غفار بوډا پلار هم په دې خبره ډېر خوشحاله
وو. بهرام خان د پښتنو او ننګي د هر يو کلي هرې
بوې ځمرې ته دا د خوشحالۍ خبر ورکړو چې ځما

سکول یو پخواني ملګري د لیدو د پاره قیصه خوانۍ بازار ته ورځي.

پېښور د ډېرې مودې نه د ایران او منځني ایشیا د هغه نوېو نوېو قافلو د پاره د دمې یو ځای وو کومې به چې هندوستان ته تلاني وې او د هغه تاجرانو د پاره پړاو وو. چا به چې د اباسین په لاره د تجارت مال سمندر ته رسوو. د پېښور ښار د تنګو تنګو کوڅو یو ښې قاعده بازار وو. د دې ښار دکانونه د منځني ایشیا د سامانونو لکه قالینونه، جانمازونو، د قیمتي کانړو، ریشمو، کپړو او د جستو او تانبې د سامان نه ډک وو.

د پېښور ښار کښې د تانبې د سامان د لوښو کوڅه د موچیانو کوڅه، د قیصه ویونکو کوڅه ځان ځان له یو جدا اهمیّت لرو.

دا دواړه ځلمي د چاندۍ د لوښو کوڅې ته ورغلل

دوئنکو منادو نه هر ورځ دوه پښتانه راګرزادول. دا دپښتنو د سازشونو خلاف د سکهانو یو اقدام وو. هغوی پښتانه په دې طریقه په دی غرض وژل چې نور نرونه عبرت واخلي. په شلونو او سلونو پکړیوال پښتانه به د جمات مخې ته ناست وو. چائې به یې څښلې او د چیلم نه به یې لوګی اخستو.

په دغه وخت د خلکو د مینځه یو نیفارم کښې ملبوس یو لوړ دنګ سړې راپورته شو او د دوئ په لور راغلو داکس د غفار کلاس فیلو پاڼي شوې وو. اوس صبا یې په کائیدار کښې خدمت تر سره کولو. غفار خان ده ته د کښیناستو اشاره اوکړه. د چائیو ست یې ورته اوکړو. او په ګپ شپ شول.

ډیر وخت لا نه وو شوې چې دوه انګریزان افسران راڅرګند شول او د غفار خان د دوست په لوربې په تیز نظر اوکتل. دوئ کښې یو په نفرت سره او دې

اونکړې شو- دا چپ پاتې شو او انګریزان په مخه لاړل. غفار خان د خپل دوست په لور اُکتل چه سرېږې نېيت رو- ده څه وئيلې شو؟ د کانګرس هندوستانی افسر هم د انګریز سره زړه وره خبره نه شوه کولے ولې چې د ملازمت سوال وو.

غفار خان د بارانی کاکا په لور په تاؤ او غصه اُکتل او تپوس یې ترنه اُوکړو. چې بارانی کاکا ته خو وايې چې کانګرس کښې هندوستانی افسر د انګریز برابر وي؟ خو دا موږ څه اُلیدل؟ دا د هندوستانی افسر او د انګریز برابری ده ؟

غفار خان په کانګرس کښې د کمیشن اخستو نه انکار اوکړو. د ده دا خیال وو چې د ذلت نه ځان محفوظ کړو او نه په وخت.

خو کور کښې بهرام خان د خپل ځوئې په دې فیصلې سوړ شین کیدو- ده دئیل چې غفار خان

حمایت کښې پاتې راغله. بهرام خان په دې مند وُچې دې به خاځا نوځي انسان جوړیږي. دې هیڅ مخالف دلیل او ریدو ته تیار نه وو.

چې غفار خان دیر مجبوره شو نو انګلستان کښې بې خپل رور نه چیټی اولیږله. ده ورته اولیکل چې زهٔ د انګریزانو په فوځ کښې د ذلت او بې عزتۍ ژوند قبلولو ته تیار نه یم او نه زه د انګریزانو خدمت کولو ته تیار یم.

خان صیب د خپل کشر ورور د حوصلې همیشه ستائنه کړې وه. ده خپل پلار ته اولیکل چې غفار کاییدز کښې د کمیشن نه اخستو په بابله صحي نیصله کړې ده او هیڅوک د بې عزتۍ او ذلت ژوند تیرولو ته مجبورول نه ده پکار. دا بو داسې دلیل وو چې هر پښتون پرې پوهیدې شو. نتیجه بې دا شوه چې بهرام خان خپل مند په دې شرط پریښودو چې دې به خپل تعلیم جاری ساتي.

سپهه راغله. دده کیمبل پوهنتون پرېښودو. او د قطبي هندوستان په مرکز علیګړه کښې چې په یو مشن سکول کښې داخله واخسته.

د کال په اخره کښې دده نه د پلار چټي راغله عزتمند وګرام بهرام خان دې ته تیار کړې وو. چې غفار خان خپل ورور پسې انګلستان ته لاړ شي ځ دده پوهه جیومیټرۍ کښې ډیره ښه ده. دې به د خان صیب سره انګلستان کښې اوسیږي او انجنیرنګ به اوکړي. دې لړ کښې به وګرام ټول بندوبس اوکړي انګلستان ته؟ ځ دهٔ په دې خبره یقین نه راتلو! او بیا به هلته د خپل ورور سره اوسیږم؟ د ده پلار دده ته درې زره روپۍ هم رالیږلي وې او دهٔ ته یې د انګلستان دتلو د تیارۍ هدایت کړې وو.

غفار خان په بیړه کلي ته لاړ و چې د خپلې مور نه انګلستان ته د تلو اجازت واخلي خو دهغې دا خبره خوښه نه شوه. د هغې سترګې د اوښکو

غفار کوشش اوکړو چې په خپلې مور دا خبره اومني ده اوې چې ګوره مورې دې خپل هېواد ته فکر اوکړه دلته بې ګناه کسان په نه څه جرم په مقدمو کښې ګیر شي. ځان خلاصولې نه شي او تبه شي یا پالسي شي. دلته هیڅوک محفوظ نه دي. زهٔ به انګلستان کښې تعلیم حاصل کړم او د دې بې وسه او مجبوره پښتنو په کار به راځم. دلته په خپل هېواد کښې به د دې خرابو قوانینو خلاف جهاد کوؤم.

داسې نه شي کیدې ځما کشره ځویه. ما ته ملایانو وئیلي دي چې څوک اغه هېواد ته ورشي بیا چرې واپس نه راځي.

خو زهٔ خو صرف د دوه کالو د پاره ځم. هلته به د خپل رور سره اوسیږم. دا او وئیل نا ځویه نا. ځما یو ځوئې هلته لاړ دې او ملایان وائي چې بیا به هېڅ اونهٔ لیدې شم. خو مورې دلته به زهٔ څه کوم؟ دا تپوس اوکړو.

زهٔ د وِیر او خفګان په قیمت خپل مستقبل نه
غواړم - نه چې څه وائي هغه به کوم ـــ ستاخوښه
ځما خوښه - زه به دلته خپل هیواد کښې ودم - دلته
به دې هیواد کښې چې په ما ډېر ګران دے -




---

## پنځم باب

# بهادر او غضبناک پښتون
## (۱۹۰۹ - ۱۹۱۳ء)

> دا ځما پخه عقیده او باور دی چې اسلام عمل یقین او محبت دی. د دې نه بغیر مسلماني بې مطلبه شي. قرآن دا خبره ښه صفا کړې ده چې په یو الله باور لرل او نیک عمل د انسان د نجات د پاره کافي دي. (حضرت باچاخان)

د ډېرې مودې راسې به غریبو ډیاتلو دا خبره کوله چې د پېښور او کرم د وادۍ پښتانه نرم شوي دي. دوئ د جنګ نه زیاته مینه د خپلو ځمکو سره لري. یقیناً چې

دغه په خپلو پښتو کښې کار شروع کړو. خود دغه روح بې آرامه وو. چې دغه به د خپلې علاقې او ضلعې د کړونده کړو او د میدانانو سره خبرې کولې نو دې به په دې نتیجه را ورسېده چې دغه خلق د بې خونده مشکلاتو سره مخامخ دي. د دغه کېږ چاپېره ناداري او غربت ؤو. بې علمي او تشدد، دښمنۍ او تربګنۍ وې او دغه غوښتل چې د دې اولس د پاره څه کول پکار دي.

شروع شروع کښې دې په دې احساسانو نه رسیدو — اولسي اصلاح د پښتون معاشرې خاصیت نه وو. دا د انګریزانو فکر وو. ځکه چې ملایانو به د انګریز سرکار بد وئیل او انګریزان به هېڅ نه خوښول خو اولس خپله د ملایانو په ولقه کښې وو. انګریز سرکار به په اولس د ملایانو قبضه ټخولو کښې لاس کوو. او د دې په بدل کښې ملایان د اولسي اصلاح خلاف وو او د څه اولسي یا سیاسي اصلاح جاد کېدنه به هېڅ نه کوله.

ځلمي خان، غفار خان په دې رسیدلی وو - دغه نه

چې د چا پرې وي د هغه غاړه وي. رحم، مهرباني او سخاوت د الله کارونه وو. دې خپله هم حیران وو چې دا جذبه د کومې راغله. شل کلنې زمیندار، د مستقبل عظیم باچا خان د خدمت میدان ته د را دنګلو ضرورت ډېر شدت سره محسوس کړو. تندرست

یو ماسپخین چې دی د کور په خواه پټي کښې کار کولو، ده ته خپل پخواني استاذ عزنمند وګرم را یاد شو. دګرمه په خاموشۍ کښې ده ته یو پخواني متل را یاد شو چې "خربوزه د خربوزې نه رنګ اخلي" غفار په کلونو په مشن سکول کښې دغه دوه رونړه لیدلي وو چې څومره بې غرضۍ سره به هې کارکولو ده نه سوچ راغلو چې د هغوی مینې او بې غرضۍ او سخاوت به ضرور څما فکر متاثره کړي وي. او هغه لمحه وه چې ده د پښتنو خدمت ته د ملا ورکولو فیصله اوکړه. دا فیصله د یو عظیم تحریک او د یو تاریخي شخصیّت را پیدا کولو بنیاد دګرځیده.

لښم هم نه دې پاس کړې. او دې به د پښتون په شان ذړې او دردوند تمام خدمت کوي.

دا ته بیا خیال راغلو چې او محمدزئي خو زه یم د رسول الله صلی الله علیه وسلم اُمتي یم. نور زهٔ څه غواړم زه لوستلی شم، زه لیکلی شم. زهٔ زمیداري کولی شم نور ماله څه پکار دي؟ دا یه غورهٔ وي چې زه یو سکول قائم کړم.

"جارج کرزن لیکلي وو چې نهٔ دا اولس پیژنم"

" دا دَ امزرو په څیر بهادران دي، د پیشوکانو په څیر غضب ناک دي او د ماشومانو په څیر نرمان بردارهٔ دي. دا دَ ویاړ او فخر خبرهٔ ده چې پښتون چاته پیړدوبۍ ورانډې کړي"

لارډ کرزن چې څه د پښتنو په بابله څه لیکلي وو هغه ټې د زړهٔ د تل نه لیکلي وو. دا د پښتنو ستا ئنه کوله خو دَ دوئ په حقله د غلط فهمو ښکار هم نه وو. کال ۱۸۹۹ء کښې دې د هندوستان وائسرائ

شوې وُو. او د کال ۱۹۱۰ء تر مخه چې غفار خان خپل
پر مبې سکول قایم کړو پښتونخوا کښې ډېرې تبدیلۍ
راغلې وې. او دا ټولې تبدیلۍ د لارډ کرزن د منصوبو
په وجه ممکن شوې وې. کال ۱۸۹۰ء کښې د پښتونخوا په
خاوره د غضبناکو جنګونو نه وروستو په انګلستان دا
حقیقت ښکاره شوې وو چې د پښتنو سیمه د دوئ
د پاره د بارودو ډېرې دې او دا د بارودو ډېرې
کله هم چاودې شي او فرنګي دا نه خوښوله. چې د
هندوستان په دروازه دِ داسې چاودنې کېږي. د
انګریزانو دا ویره وه چې څو پورې د بم ملا په لمسون
د بارودو ډېرې چاودې شي د روسانو د پاره به دلته
د خپو څخولو موقعې په لاس ورځي. د فارورډ پالیسی
په برکت څو د پېرنې خطرو څخ نیولې شوې وُو. ولې
پښتونخوا د ننه دننه غیر محفوظ وه د هندوستان
سلامتیا په خطره کښې وه. د وائسرائې په حېث کرزن
ته دا علم وو چې د هندوستاني شهنشاهیت تحفظ او
سلامتیا د دهٔ اولنی فرض وو او په دې غرض کښې

د کرزن د منصوبو تر څنګه پښتونخوا نیغ په نیغه دلی کښې د وائسرائ د کنټرول لاندې راغله. د صوبې تکلیف او مشکل په دې بر سیره کیدو به په تندئ سره فیصلې کیدې شوې. د غریزو سیمو قبائل د بندوبستي سیمو نه بېرې کړې شول او د خان په خیر پښتنو د پاره د حکومت د اجازت نه بغېر قبائلو سیمو ته ورتلل هم ناممکن شول او په دغه چل د پښتون د حلالولو او بربکولو کار سرته او رسید پښتون انتظامي قاعدو په زوره غوڅ کړې شو.

د کرزن په منصوبو کښې په قطب کښې د ملاکنډ نه واخله سهيل کښې د ایران په پوله وزیرستان پورې په مستقل ډول لس زره وسله بند فوځ واچولې شو نورې قلاګانې جوړې کړې شوې او د خطرې ځائې ته هندوستاني فوځ په تندئ سره رسولو په غرض سړکونه جوړ کړې شول او د ریل پټړې خورې کړې شوې د پښتونخوا صوبه یې بند کتاب اوګرځولې شو او د

قوانینو نو څخه د مقدمې نه بغیر د سزا په توګه یو کس د خپلې علاقې نه بلې علاقې ته بوتلې شو. د ټول عمر د پاره. انصاف د پولټیکل ایجنټ یا د انګریزانو ملټري خانانو لاس کښې وو. چې کوم بنیادي حقونه د ملک په باچائ کښې هر چاته حاصل وو هغه پښتنو ته نه وو حاصل د دې سلوک نه دا حقیقت ښکاره کیدو چې په پښتنو هیڅ قسمه باور نه شو کولې. د لې او لندن کښې شاهي قوانونو دوئ ته د وحشیانو په نظر کتل.

کال ۱۹۰۱ء کښې په نهم نومبر پښتونخوا ر د سرحد په نامه) شمال صوبه اوګرځولې شوه حقیقت دا دې چې دا یو وسله بنده کیږدن وو. یو پولسي صوبه وه. دلته د پولس راج وو او دا هغه حالات وو. چې غفار خان اتمانز وکښې خپل سکول پرانستو. دا خبره د غفار خان یا د کرزن په خیال خاطر کښې هم نه وه چې یوه ورځ به دا سې راشي چې دا وړوکې سکول به د وائسرائ منصوبې په ... وکښې کډې کړي.

مصلح وو. د صلحې ټولو ښښتو دې د حاجي صيب په
حبث پيژندو او دې ښې يو بزرګ او ولي ګڼړ نو
ګنړ ځلمي د ده ښې‌دکار جوړ شوي وو. او چې کله
ده ته معلومه شوه چې يو محمدزيٰ ځلمي اتمانزو
کښې يوه مدرسه قائمه کړې ده نو په قدرتي توګه
د دهٔ هم دلچسپي په کښې پيدا شوه. حاجي صاحب دا
اندازه اوکوله چې د دې ځلمي په ښيړه کښې به ماته
يو ښه ملګرې په لاس راشي او غفار خان ته يې
مردان ته د راتلو بلنه ورکړه.

د غفار خان سکول په لږ وخت کښې کاميابي
اوموندله. ملايانو به هميشه کلي والو ته وئيل چې د
فرنګي د سکولونو نه ځان ساتئ ولې د دوئ سره څه
متبادل بندوبست نه وو. چې کوم آزاد خياله ښنانه وُو
هغوئ چې اُتمانزو کښې په سکول ورمات شول خان
او د ده ملګري عبدالعزيز ګيږ چاپيره کلو کښې داسې نور

دې د بېدار شي. د دې نه علاوه د ملايانو په زړه هم خبره نه ځائېده. د هغوئ سره دا ويره وه چې که چرې ولس لوستې او تعليم يافته شو نو په موږ خبرات صدقه بند شي.

غفار خان به کوشش کوو چې ملايان خپل طرفدار کړي. ده مرې کښې يو وارې يو ملا ته اووې چې مولانا صيب! دا ښائسته بنګله اوګوره. ستا د دې بنګلې متعلق څه خيال دې؟ دا خو ډيره ښائسته ده. ملا ځواب ورکړو تاته دا معلومه ده چې دې بنګلې کښې څوک اوسيګي دې؟ غفار ترنه بيا تپوس اوکړو. نا. څوک دلته اوسي؟ ملا تپوس اوکړو.

دا د انګريزانو ملا صيب دې. که يو ملک آباد او خوشحاله شي او اولس ترقي اوکړي، هلته د ملايانو ورځ هم ښه شي او هغوئ داسې ښکلې ښکلې ښکلو کښې اوسيدې شي. څوک چه موږ جاهل او ناداره پاتې شو نو بيا کوړ په کوړ د خپو خيرات راغونډولو په غرض ګرځيدل

ژوند مقابله د دې انګريزانو د ملا سره وکړه. ګوره
کنه څومره لوئ فرق دې.

ملا خيلو اُډو ته شرق ورکړو. او دې وئيل چې
دا صحي ده چې زموږه آمدني لږه ده خو يقيني خو
ده. چا نه څه پته ده چې د دير تعليم په نتيجه
کښې څه مصيبت پروت دې. ملا ژيا ته کړه چې د تعليم
نه څه جوړيږي نه.

غفار خان دوستو عبدالعزيز ته او وئيل چې په ملا
م محنت اوکړو خو خوادي م هسې اوبو يوړه. دا ملايان
د هيڅ خبره نه مني. چې دوئ الله تعالیٰ نه دي پوهه
کړي زهٔ به ئې څه پوهه کړم.

چې کله دهٔ مردان کښې د حاجي صيب سره اوليدل
هغه ده ته په قطب کښې په ګداګ کښې د لويو هلکانو
د پاره د يو سکول پرانستو مشوره ورکړه. دهٔ فوراً دَ
حاجي صيب دا خبره او منله.

او "الهلال" کښې ليکل شوروکړل. دا هغه وخت دی چې د مسلمانانو د بيا را بيداريدو عمل شورو شوی وو او د دې تنومندو او يخو هواګانو اثر د هندوستان مسلمانانو قبول کړی وو.

فرنګی حاکم په دې تبديلۍ رسيدلی وو. هغوی د هر هغه چا خلاف شول او بليک لسټ يې کړل چا به چې الهلال لوستو. د فرنټيئر کرائمز د قانون تر مخه د جانونو سيوا هر چرته په غونډو سخته پابندی لګيدلې وه او د دغه وجه وه چې خان غفار خان او حاجي صيب به سره د خپلو پيروکارو ملګرو په صوبه کښې پټ پټ ګرځيدل. او غونډې به يې کولې او پښتنو ته به يې د علم حاصلولو او په يو اتفاق د اوسيدو تبليغ ورکولو.

د غفار خان ټولې سرګرمۍ د ده پلار بهرام خان د پاره د پريشانۍ وجې جوړې شوې وې. د دې خان دوه لونړه وادۀ شوي وې. د ده مشر ځوی انګلستان

ډېر نورزن او ځلمي پښتانه په نه څه خبره جېلونو ته لېږلي شوي وو. او يا بهر هند کښې اندمان کښې کېمپونو ته لېږولي شوي وو او ډېر داسې دوَ چې بې تېوسه او بغېر مقدمې پانسي کړې شوي وو.

د بهرام خان نېټې د بهرام خان په خفګان پوهه شو. دې بهرام خان ته تسلي ورکړه چې غفار خان يو ذمه وار ځلمي دې او هغه په خپل کار ښه پوهېږي بهرام او وئيل چې که د غفار خان سرګرمياني ستا خوښې دې نو ځما هم خوښې دي.

بيا هم ده فېصله اوکړه چې که د دې هلک وادهٔ اوکړې شي نو دې به بدل شي او په دې خيال ده دَ خپل ځوئ د واده بندوبست د هغې جينۍ سره جوړ کړو په کومې کښې چې غفار خان خپله دلچسپي ښکاره کړې وه.

د غفار خان د خپلې پېې مخې ښځې سره ډېره مينه وه او کال ۱۳۱۹ء کښې يې د ځوئ غني پېدا شو د دې

خیال به د صوبې هغه اولس په لور آکړځیدو چې بې تعلیمه وو. ناداره او غریبان وو. رنځوران وو او بېوسي ودبانديې غالبه راغلي وه. د غفار خان زړه به دا خبره ډیره محسوسوله چې غفار خان په کهنتو کهنتو غلې ناست وې " هیڅ خبره نکوي په فکرونو کښې ډوب وي. دا د غفارخان د خاموشۍ نه تنګه راغله او یوې په سر واخسته خودې څه کوټې شول.

دې وخت نه وو تیر چې یوې پېښې د خان خوبونه را اولړزول. حاجي صیب فیصله اوکړه چې د انګریزانو سره به په ځرګنده مقابله کوؤم. ده کوشش اوکړو چې فیرنګي د غرونو نه ایستلو په غرض د بونیر اولس راغونډ کړي خو تیر شوې جنګ لا اوس هم د خلکو یاد وو. او حاجی صیب ځان د ملایانو چا به چې د ده خلاف جالونه خورول او د انګریزانو په منځ کښې ګیر محسوس کړو ولې چې انګریزان د ده د سرګرمو په وجه را بیر شوي

پښتونخوا کښې موږنده غته غلطي داکړې ده. چې
حاجي صیب ته مود وتو موقع ورکړه خو. انګریزانو
طبیعت دا هم نه وو چې د حاجي صیب د نیوه. په
غرض دے مومندو سره جنګ اوکړي.

د حاجي صیب وتل د خلیر یشت کلن غفار خان دپاره
یوه لویه پیښه وه. اوس د ده په شان توندن ځلمي
دکار دپاره وروستنو پاتې وو. او دا یو سوال وو چې
د حاجي صیب غیر موجودګۍ کښې به څوک راوړاندې
کیږي.

خان د امداد تر لاسه کولو فیصله اُوکړه. کال
۱۹۱۳ء کښې آګرې کښې د ترقي پسندو مسلمانانو یو
کانفرنس کښې د ګډون فیصله اوکړه. آګره د
مغلو په وخت کښې یو مرکز وو. او اوس یې هم د
روښانه اسلامي تهذیب څرګندونه کوله. دلته غفار
خان د مولانا آزاد په څیر مشرانو سره اُلیدل
حاجي ثنول د صوغم کښې د وروستو پاتې مسلمانانو

کار اوکړه ولې چې هغته د تعلیم ضرورت ډیر زیات دی.

غفار خان دوی ته اووئیل چې د فرنټیر ریګولیشنز د بندوبستي سیمو په پښتنو دومره سختې پابندئ لګولي دي چې د غیرېږدو سیمو د قبائلو رونړو سره ورته د خبرو اترو اجازت هم نه شي ورکولې. د دې پابندو نو هغه دا خنګه ممکن کیدې شي چې د غیرېږدو سیمو اولس نه د یک موست انبودلې شي. بهرحال غفار خان دې ته تیار شو ولې چې دا یو ښه خیال او یوه ښه مشوره وه. او د دې جوګه وه چې آزماښت پرې وکړې شي.

ده قطب کښې د غیرېزي صلعې. باجوړ نه د تلو فیصله وکړه. دا هغه ځائی وو. کوم ځائې چې ښځلس کاله اګا هو د ملا مستون قبیلو د فرنګي خلاف د پښتنو ښوا یو لوئې جنګ جوړ کړې وو. د انګریزانو هم هغه

چېرې د دا خبره د قانون وي. يوازې هغه انسان به
د پولیټیکل ایجنټ په حیث ایجنسو ته لیږلی شول څوک
به چې بنه سخت مزاجه او بې رحم کسان وو.

د ملاکنډ ایجنسۍ پولیټیکل ایجنټ کیب نوټ یوبلانامه
سړی وو هغه دا قانون جوړ کړی وو چې چا پښتون
ته انګریز په مخه ورشي هغه به ورته ادب او تعظیم
کښې سر ښکته کوي. که چا پښتون به داسې نه کړل
شول هغه ته به سخته سزا ورکولې شوه او په دې
جعل وه په ټولې ضلعې کښې یره خوره کړې وه.

د یخنۍ په ورځو کښې بو یخ سمر خان د یو مومند
ملګري سره د باجوړ په لور روان شو. دوی د ماښام
په خړه کښې د ملاکنډ درې ته اورسیدل. پولیس به
د هر هغه چا تلاشي اخسته څوک چې د دوی به نظر
کښې مشکوک وو. او خان په دې خبره پوهید د چې
دې به را ایسار کړې شي او شاید ګرفتار به کړې شي
دې په اس کاډي کښې څملا ستو او څادر کښې پټ شو.

تا نګيوال ته بېې د تلو اجازت ورکړ.

چې دوئ د چکدرې په څوکه ورننې شول د هغه ځایه دوئ د سړک نه د باجوړ په غرونو ورواوړېدل چيمرکنډ کښې د حاجي صيب پېر ډکادو دوئ ته ميلمستيا ورکړه. د هغه ځايه دوئ د ناګه کلي ته اورسيدل د غفار خان خيال وو چې دا کلي د کار شورو کولو د پاره ښه ځاي دې. ولې چې دا کاڼي لرې پروت دے. او د نظره څنګ ته پروت دے نه علاوه کليوالو دوئ خوښول. ده خپلو نورو ملګرو ته هم دغه ځای ته د رارسیدو پيغام ورکړو او د راتګ په انتظار بې شول.

دغلته د جماعت سره نزدې به دوئ ته د بلجوړدادي په نظر راتله. هلته فرنګي حاکم په هر څيز نظرساتو د يو څو ورځو د انتظار نه پس غفار فکر واختوچې آيا ځما دوستان خو د څه پېښې سره مخامخ شوي نه دي او آيا زمونږ پيغام هغوئ ته رسيدلې هم دې او که نه؟

دې انتظار کښې د ځ د پاسه ورځ تيريده.

حالاتو کښې به څوک څه کار اوکړي. چې د فرنګي تنخواه دار شاګردان د خپلو استاذانو په بابله مخبري کوي؟

يواځې او پريشان حالت کښې ځلمي خان د خپلې کولو فيصله اوکړه. د دې غرض د پاره دې هلته يو دوه ورځې شان ځان کښې د يو څو ورځو د پاره "چله" شو. دې دوران کښې ده نه څه خوړل او نه څښل يواځې په اوبو به پسې ګذاره کوله.

ده د يو څو تپوسونو ځواب غوښتو. ده تپوس کولو چې آيا ماته د لته ايساديدل په کار دي او که نه؟ آيا دا به غوره وي چې اتمانزو ته واپس شم او هلته د خپلو خپلوانو سره د آرام او مزې ژوند تيروم؟ ماته څه کول په کار دي؟ چې هيڅ ځواب ورته ملاؤ نه شو نو دې د شعور په ژورو کښې ورډوب شو او يو داسې وخت راغلو چې تپوسونه اودريدل.

اوه سوه کاله اګاهو فرانسس هم د سان ډاميو په ملتې کوډې او خوشې ټشي چرچ کښې د عبادت او دعا په غرض ورننوتو. ده يو زړه ور آواز واوريدو چې ده

ګرجې د مرمت د پاره یې کا نړي اوکتې راغونډ کړل.

د سان ځامنیو د ماتو ګوډو دیوالونو د مرمت شورو کولو سره فرانس یو داسې مشن شورو کړو چې د ده ژوند یې بیخي بدل کړو. غفار خان ته په خپل باطني ژوند د فرانسس نه زیات ضبط حاصل دې. د ناګه جمات کښې د ده چله مبهم او یې ننیجې پاتې شوه ولې دَ دغه ځایه دا کتې شي چې د ده دَ خبرو اثرو او سرګرمو یو مقصد وو- " د خدائې خدمت" او د نوي کالو پورې تر مرګ پورې چې ده کوم هدف ټاکلې وو. هغې کښې څه فرق را نغلو او په ثابت قدمۍ سره یې د خپل مرام حاصلولو د پاره خپل جد وجهد جاري اُساتلو. د غفار ثابت قدمي ده ته په نړۍ کښې یو ډیر لوړ مقام ورکوي.

یو څو ورځې پس سحر وختي غفار خان خپله چله ختمه کړه ده خپل جاه نماز را اُنغښتو او ډیر طاقتور احساس سره د جمات نه را اووتو. اګر چې د جمات ننه ددې څه د

څوبنتل د هغوئي پهقله دا څه ځواب نه وُو موندلې خو دهٔ ځان کښې يو قوت، يوه توانائي محسوسوله ـــ داسې قوّت او توانائيُ او احساس چې دهٔ ته بېدراني څه تجربه نه وه شوې. دې پوه شو ـــ ده تنت تنت محسوس کړل چې دا 'قوت' دا توانائي ماته الله تعالیٰ را بخښلې ده. دا هغه قوت دې چې د انساني قوت سره بې مقابله نه شي کيدې. انساني قوت ستړې شي ستومانه شي ولې هغه قوت چې د الله مرضي او رضا په کښې شامله وي هغه ستړي کيږي نه او دغه وجه دا چې غفار خان د ژوند اخري سلګو پورې ـــ د خدائې د مخلوق خدمت جاري ساتو.

اسلام ـــ د دهٔ باطن کښې د اسلام معنٰی واضح کيدهٔ اسلام څه دې ؟ د الله تعالیٰ مرضي او خوښئ ته ځان سپارل. د غفار په زړهٔ کښې د الله تعالیٰ د خدمت خيال په چپو شو ـــ خو الله تعالیٰ ته د خدمت څه ضرورت دې ؟ ده ځان نه تپوس اوکړو او ځان ته بې ځواب

دې خوک حې نالوستي دي، نږېکنو او د بېمنوکښې بزخت دي، نادارہ او زحمتکښان دي، بېښې ابلې او په نن لغړ دي. دا د پلې اولس. دا د الله مخلوق خدمت غواړي د دوئ ژوند روښانه کول غواړي.

غفار د غر د لوړې نه ښکته وادي ته اوکتل دغلته انګرېزان وو سره د خپل ټول زور ظلم، مضبوت خانان دو. رجعت پرست ملایان وو چې د خدائ په نامه بې د اولس استحصال کولو. ده نه دغريب اولس په ژوند کښې د خوشحالۍ او آرام هيڅ نښې نښانې په نظر رانغلې د غريب اولس په ژوند کښې دغم درد او بې وسۍ نه علاوه هيڅ نه وو ـــ خو د ده طبيعت په ځائ وو. که ژوند ناوړه په خير دې هيڅ بوه نه شو چې ده نه خوک د کوم ځايه غږ کوي دې د غږ په نوعيت خو او نه رسيدو خو دومره پوهه شوې وو چې ده ته هم غږ شوې دې ده فيصله اوکړه چې زه به د الله تعالی مرضۍ ته ځان سپارم

ځپل آرام او سکون د عام وګړي د درد نه قربانوم.

غفار خان په چرې داګمان هم نه وی کړې چې دې په یوه داسې لاره روان شوې دې چې په کومه لاره د هندوستان یو بل استوګن موهنداس ګاندهي لس کاله اګاهو تګ شروع کړې وو. هغه وخت کله چې خان کلي ته واپس شو او هغه سکولونه بې پرانستل کوم چې انګریزانو د حاجي صيب د روپوش کېدو نه پس بند کړي وو، هم دغه وخت ګاندهي د جنوبي افريقې نه د هندوستان په لور روان شوې وو. دهٔ هلته جنوبي افريقې کښې د شهنشاهيت خلاف د عدم تشدد په بنياد رومبې کامياب تحريک چلولې وو.

جنوبي افريقه کښې د ګاندهي کردار کښې يو داسې بدلون راغلې وو. چې د دهٔ د ژوند مقصدهې بېخي بدل کړې وو. دهٔ لس کاله مسلسل د ژوند ستهاګل بدلولو د پاره کوشش کړې وو. او په دغه دول دې د يو مالداره او کار جوړي ی وکيل په ځاې د الله تعالے

دَ کال ۱۹۰۷ کښې دَ "ذدلو" بغاوت کښې دسنو ټکیرا
ورو داور وکار کوَو ــ دا د انګلستان خلاف یو بل
انتقامي مهم وو. دې کښې د داسې محسوسه کړې ده
لکه ده ته د ننه نه آواز ورکړې شوې وي چې د
بنی نوع انسان بې غرضه خدمت شوروکړو دا
هغه کار دې او هله نړ سره کیدې شي چې سړې
دځان دَ دنیا نه راجر شي او د انسانانو په مسلو
کښې دلچسپې اخستل شوروکړي .

ګاندهي د ایمبولنس ملازمت پریښود. ده ځان
کښې یوه نوې جذبه او یو نوې قوت محسوسولو ولې
ده ته دا پته نه وه چې زه به څهٔ کوَم ځما
منزل او هدف څه دې؟ څو هفتو کښې دننه
دې د یو داسې مهم مشر وو کوم چې د امتیازي
قانون سازۍ خلاف شورو کړې شوې وو. دې په دې
مهم کښې چې کله د جنګ د نوي ټیکنیک په بابله په
خپل ځان د دهٔ باور پوخ شوي وو، دې د جنوبي

کیدل ـ او دا قوت د برطانوي راج د هغه سیاستدانانو او جرنیلانو د قوت نه بالکل بدل وو او د فرنګي حاکمانو مقابله د داسې قوت سره چرې ورانديې نوه راغلې.

برطانوي حاکمانو د ډپلومیسي او جنګ په ذریعه څلورمه برخه نړۍ فتح کړې وه خو اوس د تاریخ ئونونه ډیر په تندۍ سره د دوی خلاف شوي وو دا بیخي نوې قوت وو. سنیاګره د "روح قوت" دا هغه قوت وو چې د انساني روح په زورو کښې وده موومي.

د کال ۱۹۱۶ء په ګرمۍ کښې هندوستان د فرنګیانو لاسونو کښې بالکل محفوظ وو. هندوستان نه د هیڅ نه هیڅ خطره نه وه. د خطرې عدمې موجودګۍ د انګریزانو د نسلونو د پاره د جوانانو یوه بنه وجه وه ډیرو انګریزانو به چرې دا سوچ هم نه وي کړې ګنې راتلونکي دیرشو کالو کښې د وادیۍ حکمراني ختمیدې

هم شي ...

ګټې ددې د پاره څه پاتې دي؟ موږ دېنو چې د تاریخ کړنېښې د ددې واک کښې دي. لکه څنګه چې د ماضي تاریخ دا دوارو شخصیتونه هیڅ ولې نشي هم داسې د مستقبل تاریخ هم د ددې په کردار ځان غلې کولې نه شي. حقیقت دا دې چې دا د تاریخ خوش بختي ده. چې د غفار خان په څیر شخصیت درکښې ځاۍ دي.

## شپږم باب

# د باچاخان ارمان

۱۹۱۴ ـ ۱۹۲۱ء

"زهٔ یو خوب وینم یو لوئ ارمان لرم څما د اولس حالت د صحرا د هغه ګلونو په شان دي چې صحرا کښې ذرغون شي. یو څو ورځې بس مراوي شي او بیا د خاورو سره خاورې شي. زهٔ غواړم چې څما اولس د یو بل سره غمونه او خوشحالۍ ویش کړي زه غواړم چې د قام د خوشحالۍ د پاره د برابرۍ په بنیاد د یو بل سره اُږه په اُږه کار اوکړي زهٔ غواړم چې دوی د قام تقدیر بدلولو کښې خپل قامي کردار ادا کړي او دوئ د نړۍ د نورو قامونو سره سم شي او دوی د الله تعالیٰ د مخلوق د خدمت کولو جوګه شي"

(حضرت باچا خان)

دي جنګ کښې د هندوستان اولس ملوث کولو په غرض انګریزانو دا اشاره ورکړې وه چې د جنګ په ختمېدو به هندوستان کښې سیاسي اصلاحات اوکړې شي. دوئ دا اشاره هم ورکړه چې هندوستان ته د ډومنین (DOMINION) درجه هم ورکیدې شي د ښځولکوکلونه زیات هندوستانیان د انګریزي راج په د فاع کښې فرانس جرمني، ترکیه، شام او شمالي افریقې کښې اُجنګېدل.

هندوستان کښې حالات د ورانډې نه سخت شوي وو. د جنګ په ورځو کښې په اخبارونو سختې پابندۍ لګیدلې دي، په سیاسي غونډو او سرګرمو بندشونه وو او د انګریزانو خلاف لږ غوندې ویل هم زغملې نه شول او خفیه فوځي عدالتونو بې شمېره هندوستانیان جیلونو ته لیږلي وو.

پښتونخوا کښې باچا خان د حاجي صیب ځائې نیولې ؤ او ښه په زړه ورتیا سره یې کار شورو کړې وو دهٔ به د کلو دورې کولې. هلته به یې سکولونه پرانستل او اولس

فرمان دې چې هر چا ته د خپل حالت بدلولو د پاره هسه پکار ده.

دهٔ چې کار شورو کړو، په هر قدم او هر کوټ اقاتو خلک دَ دهٔ مخه اُنیوه. د ملاکنډ ایجنسۍ پولټیکل ایجنټ ډیر سخت کیر انسان وو. دهٔ خو به لا په ښکنده د خان کارکنانو ته دهمکۍ ورکولې او لا به یې په عجیبه عجیبه طریقو د دوی کارکښې خنډان پیدا کول. د دې پولټیکل ایجنټ چې نباغلی کب نومید و. د دې نه بل څه کار ته وو چې باچاخان دخپل رعب لاندې راولي. ده یوه ورځ د دیر نواب خپل دفتر ته راُبللو او په ضلعې کښې یې د یواځنې سکول په بابله اودیل چې نواب صیب! د سکولونه اودا سبق زموږ د پاره خندان پید کوي که نه غواړې! چې د دې سکول په وجه ستا د پاره مشکلات پیدا نشي نو غوره خبره دا ده چې خومره ژر کیدې شي دا سکول تباه کړه.

نواب صیب یوڅو ورځو کښې دننه دا سکول

رنځور شو یو ټغ مانیګر باچا خان د خپل رنځور ځوي د کټ سره ټوله شپه ناست و. کله چې ده ډیره زیاته خوا شوه اوکړه د ده پیغله ښځه کمرې ته راننوته. دا د خپل رنځور ځوي د کټ نه یو څو واره تاو را تاو شوه او بیا یې لاسونه د دعا د پاره اوچت کړل دې اوې چې یا الله ته یوې او یواځې دې ننګې معاف کوونکې او بخښونکې یې. یا الله زما دا ماشوم ځوي روغ رمټ کړې او د ده دا تکلیف په ما راولې" دا یو څو واره بیا د ماشوم ځوي د کټ نه تاو را تاو شوه او دغه دعا یې په خوله وه چې" اې ربه زما د ماشوم ځوي نه د بیمارۍ دا درانه اوچت کړې او د ده په ځای ما رنځوره کړې" چې سحر راماتیدو دا هلک را سمیدو. د ده تبه ماته شوې وه او د ده مور د ده په خوا کښې په کټ رنځوره پرته وه. په دې سخته تبه راغلې وه تبوله ورځ پرې دا شان حالت پاتې شو او چې سحر سحر کیدو دا په حق اورسیده.

باچا خان خپله ښځه د هغې د ناوړتوب په جامو کښې خاوړو ته اوسپارله د دې په قبر یې ګلونه انبار کړل زما هره خبره ده چې باچا خان ته د خپلې پیغلې ښځې په مرګ

دخپل غمونه بېي په قامي خدمت کښې دفن کړي دهٔ،
خلکو ته د زراعت کار ښودلو او دوي ته به يې وئيل
چې خپل کورونه او کوڅې صفا ستهرا ساتۀ. دهٔ نوړ
سکولونه پرانستل. دهٔ د نادارۀ او سمت ځانه اولس په
مخونو کښې نسله موندهٔ، ده د خپل اولس سره زښته
ډیره مینه وه. باچا خان د نړۍ په هغه یوڅو مشرانو
کښې یو وو چې د چا ژوند او مرګ يواځې د خپل
اولس د پارۀ وې چې څوک هم د باچا خان تاريخ ليکي
هغه به خامخا دا ليکلو ته مجبوره وی چې باچا خان دَ
اولس د پارۀ ژوند تېر کړو. هغه خپل آرام، خپله ځواني
خپل وخت د يو مقصد د پارۀ قربان کړل هغه داچې ــ
پښتون اولس د نړۍ د نورو اولسونو سرۀ سيال شی دوئ
د يو بل سره د بې جوازه غيرت او دښمنو په ځائې
د يو بل سره ملګرتيا او لاس امداد کوي. مخ په وړاندې
لاړ شی او د خپل محنت په زور دَ چا موتازه پاتې نه شي.

ورو ورو خان د بر صغير د نورو مسلمان مشرانو سرۀ
رابطه جوړۀ کړۀ ده د کانګرس متعلق ډېرې خبرې اوريدلې

ګاندهي د ساده ژوند نیږولو فلسفه ډېره سمدستي خوښه کړه او دا خبره یې هم خوښه شوه چې د ژوند ټولو چارو کښې د عدم تشدد په فلسفه عمل پکار دی. دهٔ د ګاندهي په شخصیت کښې "مهاتما" اولیدو هغه لوی روح چې د الله تعالیٰ د نادارو اولس د خدمت په ذریعه یې د الله تعالیٰ خدمت کولو.

چې څنګه د ګاندهي فکر حور شو، پښتنو ته د تعلیم ورکولو لړ کښې د دهٔ کار او کوششونو نوی د خ اختیار کړو. ده پښتون د آزادۍ په لور روان کړو دلې چې آزادي د انسان د پاره هغه انعام دی په کوم کښې چې بو بنیادم خپل خوب او فکر ته د عمل جامه اچولی شي دي حوصله مند خان خپل کوششونه نور تېز کړل د کال ۱۹۱۵ء نه ۱۹۱۸ء پورې دهٔ د پښتنو څخوا په بند ولېتی سیمو کښې د ټولو پنځو سوؤ کلو دوره اوکړه. دې د خپل پښتون اولس سره - چې په کوم غفار خان ساه ورکوله د هغوی سره د دوی حجرو کښې کیناستو. د هغوی سره

معاف کولو برکتونه بیان کړل او هغوی ته یې خوا ښونه
وکړل چې خپلو کښې په ټیکنو او دښمنو مال دولت
او نوا نا بیه مه خرڅ کوي ده هغوی ته بیا بیا اوویل
چې ځان کښې دیو بل د معاف کولو قوت پیدا کړي.
چې کله به ورته وخت ملاؤ شو دکلي د ماشومانو سره
به یې ټوقې ټقالې خندا ګانې کولې. خان به د ماشومانو
سره ډیره مینه کوله او د هغوی خبرې به یې په ډیره
مینه او دلچسپۍ سره اوریدې کلیوال اولس هم د ده سره
مینه کوله ولې هغوی د ده په خبرو نه رسیدل. دې
دومره ساده وو چې خلکو ته به ملنګ په نظر راتلو
ولې دې خو سوالګر نه وو. ده خو د پښتنو نه خیر
خیرات نه غوښتو او نه دې داسې نقیر وو چې دنیا
نه یې شا کړې وي. د ده خو خپل کلې وو، خپل جاګیر
یې وو ولې ده دا هر څه د لوې جذبې لاندې پرېښې
وو. دا جذبه د خپل اولس خدمت کول وو، خپل اولس
ته تعلیم ورکول وو او دویه د نړۍ د نورو قامونو سره
اوږه په اوږه کول وو د دې غرض د پاره دې په

ده د آزادۍ د تحریک په لړ کښې د یوې جلسې صدارت کولو سادة کلیوالو ته دا مقصد واخستو چې غفار خان باچا جوړ شو. دغه غونډه کښې یو کس دمینې او جذبې نه د" باچا خان زنده باد چغه اُوهله او دهغې نه پس د پښتون اولس د ټولې صدۍ دا عظیم مصلح د غفار خان نه" باچا خان" جوړ شو. د باچا خان مطلب د خانانو باچا جوړیږي. هغه ورځ ده او نن چې غفار خان باچا خان بللې شی د باچا خان نوم د پښتنو څوا په غرونو او راغونو خوریږ و نه علاوه په ټول هندوستان او کړده نړۍ کښې خور شو.

که خانانو دې باچا بللو کلیوالو په دې نوم څه اعتراض کولې شو او چې څنګه کاندهي په مهاتما مشهور شو غفار خان باچا خان اوګرځیدو او دې یه چې د مردان نه کو هاټ پورې د کلو په دوره تلو دا آوازه به خوره وه چې باچاخان تشریف راوړي، باچا خان را روان دې. د خیل هیواد د غرونو هومره د ټک باچا خان.

..وار دا چاوُدنه د غضبناکو پښتنو په وجه نه وه دا د یو سپک دسني او نرم خوبه هندوستاني ګاندهي په وجه وه. انګریزانو او هندوستانیانو د ګاندهي په څیر انسان نه وو لیدلي. دې ورډکي غوندې سپک دسنه انسان وو. دهٔ به د کوندهګو جامې اغوستلې وې. دې ډیر کم خوراکه وو او د پرهیزګارۍ ژوند به یې تیرولو. دهٔ به خلکو ته د صفائۍ خبرې کولې او د انګریزانو د استحصالي نظام خبرې به یې هم کولې. په لکونو هندوستانیان د دهٔ پیروکار وو. ولې نه خو هندوستانیانو او نه انګریزانو دا دعوی کولې شوه ګنې دوی ګاندهي پیژني.

د ګاندهي د تحریک زړهٔ د عدم تشدد په ذریعه مزاحمت وو. بې شمیره تقریرونو او مضمونونو کنبې ګاندهي هندوستانیانو ته بیه په زړهٔ ودنیا او انقلابي ډول هدایات ورکول. دهٔ وئیل چې عدم تشدد یو خاموشه تحریک نه دې. او نه دا بې مقصده او بې تونه دې. دهٔ وئیل چې د عدم تشدد د معنی

دا د جابر حکمران خلاف ټول روحاني قوت مجتمع کړا
دي.

ګاندهي د عدم تشدد د خاموشه مزاحمت معنیٰ سره اتفاق نه وو. ده خپل لفظ" ستیاګره" ایجاد کړه. د ستیاګره مقصد او معنیٰ" د رښتیا" او استقلال دي یعنی یو داسې قوت چې هغه د رښتینتوب وي او استقلال لري یعنی یو داسې قوّت او طاقت چې د رښتیا' مینې او محبت او عدم تشدد نه پیدا کیږي.

د ستیاګره مقصد نه وو چې ګنی خرابي یې یا استحصال د آزغلي شي. د دې مقصد د ذاتي، اولسي، اقتصادي او سیاسي استحصال خلاف یو موثره مزاحمت کول وو. د ګاندهي مطابق ستیاګره یو داسې قوت دې چې مینه یې وسله ده دا یو روحاني قوت دې، یعنې خالص او ساده روحاني قوت او هغه څوک چې په ستیاګره عمل کوي. د هغه د ارادې قوت ډیره وده مومي. دا یو داسې قوت دې چې د سړي د زغم او برداشت قوت سیوا کوي.
ګاندهي وئیل چې د دې قوت په ذریعه سړه د ښمنې

ظلم وخت وي نو په کار ده چې زور ظلم او استحصال برداشت نه کړي شي.

ګاندهي لیکلي وو چې د ستیاګره د پاره نه څو د وخت څه قید شته او نه د مشکلاتو زغملو په لړ کښې د صلاحیت څه حد شته او دغه وجه ده چې د ستیاګره په عمل کښې د شکست او ماتې خوړو هډو سوال نه پیدا کیږي.

چې جنګ ختم شو نو د ګاندهي په هندوستان کښې درې کاله شوي وو. په دې لنډ وخت کښې دې د کانګرس د مشرې په کرسۍ ناست وو او دا تنظیم یې د دانشورانو د بحث مباحثې د انجمن نه په یو سیاسي تحریک کښې بدل کړې وو. اوس اوس د دې تنظیم مرسته او حمایت شروع کړې وه. د کال ۱۹۱۹ په ابتدائي موده کښې د تیرو پنځوسو کالو راسې په اولنې ځل ګاندهي د انګریزي راج خلاف بغاوت را اوچت کړ د. خو دا بغاوت د عدم تشدد په فکر ولاړ وو.

کومې پابندۍ لګیدلې وې. هغوۍ ته قانوني شکل ورکړې شو. د انګریزي راج په دفاع کښې د خپلو دینو تویولو نه پس هندوستانیان په دې نتیجه را اُرسیدل چې د دوۍ د قربانو مننه په داسې ډول کولې شي. چې د ۱۸۵۷ د غدر نه پس پرې یو داسې قانون نافذ کولې شي چې د زور او ظلم نه ډک دې. ناجائز کوي او بې انصافي رواکوي.

ګاندهي د دي خلاف دهړتال غږ ورکړو. ټول ملک کښې د دهٔ په غږ هړتال اُشو. بسونه اوریل ګاډي اود ریډل، دوکانونه، سرکاري دفترونه او کارخانې بندې شوې او ټول ښارونه او ښارګو کښې کاروبار ټپ شو.

پښتونخوا کښې پیښور په عملي توګه بیخي بند وو. او په زرګونو پښتانهٔ اُتمانزو کښې جمع شول هغه دا چې د غفار خان پلار صاحب بهرام خان د پښتنو په دغه غونډه کښې ګډون اوکړو. بهرام زوند کښې به ړومبني وار سیاسي غونډه کښې ګډون

کوي ده دي غونډې ته اوویل چې د آزادۍ د نعمت نه بل لوی نعمت په ټوله کښې نشته. ده اوویل چې آخر دا څه وجه ده چې انګریز د دومره لرې نه راځي او په موږ حکمراني کوي. ولې موږ په خپله حکمراني نشو کولی؟ د غفار خان د خبرو انداز ساده، آسان او په زړه پورې وو. ده پښتنو ته حوصله او همت ورکړل او د ده په مشرۍ کښې پښتون د هندوستان په آزادۍ کښې یو نه هیریدونکې کردار ادا کړو.

انګریز حاکم د غفار خان د خبرو اترو نه خبر شو، د پښتونخوا حکومت مارشل لاء او نکوله، خان یې ګرفتار کړو او د مقدمې نه بغیر یې سزاوار کړو. درې میاشتې قید یې کړو. انګریزانو د غفار خان په مضبوطو خپو کښې د اوسپنې زنځیرونه واچول دا زولنې د ده په خپو تنګې وې او د ده خپې یې ژوبل کړې.

په اتمانزو کښې انګریز حکومت د خپل ځناورتوب یو نه هیریدونکې یاد پرینښو دو ځوانان د کلي نه تاړ شول د

توپکې او مشین ګنونه نیغ کړل. کمانډنګ افسر خپل لاس
اوچت کړو او حکم یې ورکړو چې فائر. ۱۵۱

خلکو نارې سورې جوړې کړې. ولې فائر اُو نه شو.
توکیانو په ډیڅ ور منډې کړې او چې څه قیمتي سامان
او شیان ورته په لاس راتلو هغه یې اُشوکولو او بیا په
کورونو ورکډ شول او چې څه ورته په لاس راغلل هغه
یې تالا کړل او کاڅې یې چک کړل.

انګریزي فوځ به په داسې موقعو په منظم ډول لوټ
مار کولو انګریزانو چې په پښتنو کوم ظلمونه کړي دي
د هغې تر څنګ دا د انګریزانو هغه بې بنیاده دعوی ده چې
ګني دا د شریعه محمدیه قائم دې.

چې کوم وخت توکیانو لوټ کولو په دغه وخت انګریز
کمشنر خپلې ماته ګوډا پښتو کښې کلیوالو ته تقریر کولو. ده
وئیل چې انګریز سرکار په تاسو د بغاوت په سزا کښې
دیرش زره روپۍ جرمانه لګولي دي نه علاوه تاسو به اوه
کسان ونکوي چې د غفارخان پلار بهرام خان به په کښې
شامل وي دا به هغه وخت پورې د پیښور جیل کښې ساتلې

لیدو حیران شوې هم دي او خوشحاله شوې به هم
دي. بهرام خان به خپله ښه خوشحاله وو ولې چې
د هغه دا خیال وو چې انګریزانو به د هغه کشرې ځوې
پانسي کړې دیا ولې هغه ژوندې وو. د زورې خان دپاره
درې میاشتې جیل یوه تحفه وه ولې چې دا د خپل ځوی
سره د ده د لیدو یوه ښه موقع وه.

چې دې شپږ میاشتې پس د جیل نه راووتو نو
ده ته دا پته اولګیده چې مور او پلار د ده د واده
په بندوبست کښې مشغول وو. ده خو خپله د بل واده
سوچ هم نه وو کړې ولې د فرمان بردارې ځوې په
حیث یې د مور او پلار خوښې ته سر تیټ کړو.
دې د واده په سلسلې کښې د سود سودا اخستو د پاره
پیښور ته روان شو او دې لا پیښور ته نه وو رسیدلې
چې ګرفتار کړې شو او د جیل په یوې وړوکې کوټې
کښې واچولې شو. دې کوټې، کښې دوه کمبلې دي.

انګریز کمشنر نه تپوس اوکړو چې تاسو زه ولې نیولی یم ؟

ما ستاد معاملې تحقیق کولو. انګریز کمشنر ده ته بې پروایئ سره لنډ شان جواب ورکړو.

خان ورته اووئیل چې تاسو هغه وخت ځما د معاملې تحقیق ولې او نه کړو چې کله زه تاسو د دې نه وړاندې نیولی وم ؟

انګریز کمشنر ورته اووې چې دا ځما خوښه ده چې تحقیق وړاندې کړم او که کوزتادي وړاندې اوکړم.

زه یو انسان یم خان جواب ورکړو. ځما په حیثیت ځان پوهه کړه تاسو ما ته په نه څه خبره ولې تکلیف راکوئ؟

انګریز لیکل بند کړل او د لوئ د ننګ غفار خان په لوربې په ټهر اوکتل. بیا د انګریز په مخ څه سکون را ښکاره شو، لیکل یې شورو کړل او د غرور په نشه کښې یې تپوس اوکړو چې ته د خپل حیثیت په بابله څه خبرې کوې؟ د حیثیت خبنتن خو انګریز دې

۳فاغنه بنیاد کیښود دا یو غیر سیاسي تنظیم وو دا په دې غرض قائم کړې شوې وو چې پښتونخوا کښې د اصلاحي اولسي او تعلیمي میدانونو کښې ښه والې پیدا کړې شي ده په خاص ډول په دې خبره زور ورکړ وچې پښتنو ته د کوکوندې نه علاوه نورې پیشې اختیارول په کار دي ولې چې دومره ځمکه نشته چې د نوي کوونکو او ډمیدارانو د پاره کافي وي ده په خپله انمانزو کښې په دې غرض یو دوکان پرانستو چې د نورو د پاره یومثال قائم کړي.

کال ۱۹۲۰ء کښې د ترکیې د خلافت په بابله د انګریزانو د پالیسو خلاف مسلمان د احتجاج په توګه افغانستان ته هجرت اوکړو. په زرګونو پښتنو دې هجرت کښې ګډون اوکړو. خان هم په هجرت کوونکو کښې شامل وو. دې دېر زر د افغانستان نه پښتونخوا ته د اصلاحي کار شورو کولو دپاره راستون شو.

ده په انمانزو کښې د آزاد سکول درجه اوچته کړه

کال ۱۹۲۰ء کښې انډيا نيشنل کانګرس ناګپور کښې غونډه اوکړه او په رومبني ځل يې د عدم تشدد په ذريعه د مکمل خپل واکۍ د پاره په ډاګه د جد وجهد کولو اراده څرګنده کړه. غفار خان دې تاريخي اجلاس کښې ګډون اوکړو. دا د ده رومبني ګډون وو. دې اجلاس کښې د ګاندهي سره د ده ليدل اشول او دې د ګاندهي نه متاثره شو. څو ده ورسره څه تعلق جوړ نه کړو د سياست نه ديات د خان داخوښه وه چې کلو کښې په خاموشۍ سره خپل کار کوي د ده اصلاح عمل په دې غرض جاري کړې وو، چې پښتون اولس د نړۍ د نورو قامونو سره سيال کړي.

خان چې څنګه په کليوالو سيمو کاميابي مونده داسې داسې د انګريزانو د پاره د ده نا خوښه سيوا کيده انګريزان چې په دې پوهه شول چې د خان د سکولونو نظام ودده مومي. او پښتون کښې بيداري راځي دده د خان. د سکولونو استاذانو ته د قيد و بندګکه

کښې نشو ژغلي د انګرېز نوځی افسران د پښتنو په بېدار تیا موندلو وړې په تشویش کښې وو ـ د هغوی سینه د پښتون د پاره کله هم پراخه نه وه او نه د پښتون په حواله سره هغوی تهذیب یافته وو.

چیف کمشنر سرجان مافي د بهرام خان پېژندګلو وو. دۀ بهرام خان پېښور کښې خپل دفتر ته راو بللو او دۀ ته یې اووئیل چې ګوره بهرام خان! ستا ځوي غفار په کلي کلي ګرځی او هلته مدرسې قائموي ـ کمشنر مافي ته پته وه چې بهرام خان یو محتاط سړې دې. دۀ ورته اووئیل چې ګوره کنه چې نور خلک په خپلو کوډونو کښې ناست دي. د آرام ژوند تېر دي او د دې شیانو هډو د سره پرواه نه کوي او ستا ځوي کوشه په کوشه ګرځي ته خپل ځوي ته هدایت نشې کولې؟ دۀ ته اووایه چې کله د نورو په شان په کور کښې کېښني.

رښتیا وایې کمشنر صیب! بهرام خان جواب

بې مقصده کاردنو نه لاس په سرشي. او د پښتون غم نه کوي.

بهرام خان دې خبرې ته تيار شو او چې د پېښور نه والپس شو نو د مخې سره يې خپل کشر ځوی غفار ته او وئيل چې بابا هلکه ته د نورو خلقو په شان په خپل کور ولې نه کېښنې؟ دا نور خلک څه کوي؟ ستا نيمه رنگېزه ښځه ده دوه دې توانا او پېغلې ځامن دي. جائيداد او چاکرې لرې ته د خپلو ځکو نګراني ولې نه کوې؟ دا تا څه ناکرده راخستې دي. کلي په کلي او کوڅه په کوڅه گرځې او اولس ته نصيحتونه کوې. ولې د پښتو ټيکه دې اخستې ده څه؟

غفار خان خپل پلار ښه پېژندو. ده ورته اووئيل

چې بابا! زه ډير په ادب سره ستا نه يو تپوس کوم.

بهرام خان! وايه څه تپوس دې؟

غفارخان:۔ بابا! که هر څوک مونځ کول پرېږدي نو

تاسو به ماته هم دا نصيحت کوی چې زه د هم مونځ کول

بابا: غفار خان جواب ورکړ و. خلکو ته تعلیم ورکول او د خپل قام او اولس خدمت کول او د دوئي په کار راتلل هم داسې یو فرض دې لکه څنګه چې مونځ کول دي. آیا ستا دا نه ده خوښه چې زهٔ د خپل غریب او نادار ه اولس په کار راشم؟ که هر څوک په کور کښې او د آرام ژوند تیر دي نو دا د قام خدمت به څوک کوي؟ د دې بد قسمته اولس په کار به څوک راځي؟ چې دا اولس بیدار نه شي. د تعلیم او لیک لوستنه په خوبږو موړ نشي د دوئي راتلونکي نسلونه به هم تباه او برباد وي زه بابا! دا تاسو ته د زړهٔ د اخلاصه او ربښتوني خبره کوم چې دا هم یو عبادت دے. یو مقدس فرض دې.

بهرام خان چې د خپل ځوي خبرې واوریدې نو سوچ او نکر واختو او لږه شیبه پس بې غفار ته او وئیل چې ځویه که دا هم دومره مقدس کار دې چې څومره ته وائې نو ځما د طرف نه تاته اجازت دې. خپل کار جاري ساته چې چرته نرنه څنګ او نکړې. بې فکره، بې خطره

فریمنه پر ینبودلې نشو. دهٔ ورته او ویل چې ما هم خپل ځوې

نه د دې کار جاري ساتلو اجازت ورکړې دې.

چیف کمشنر هم په آرام دکیناستو سړې نه وو ده غفار

خان ته اېللو او نیوس یې نر نه اُکړو چې ستا سره څه

ضمانت دې چې ستا تنظیم به د حکومت او د دې دمفادو

خلاف نشي استعمالولې.

غفار خان ورته ځواب کښې اوویل چې، کمشنر صیب!

تاسو په ما باور اوکړ ئۀ.

داسې نه شي کیدې، کمشنر په غصه کښې اوویل. ته یه

ضمانت ورکوې، معافي یه غواړې او د دې کار نه به لاس

په سر کیږې.

غفار ورته په کلکه سره او ویل چې ضمانت؟ دا ضمانت

چې زهٔ به د خپل اولس په کار نه راځم، د هغوئه خدمت

به نه کوم؟

دا خدمت نه دې چې ته یې کوې، کمشنر ورته اوویل

دا خو سک بغاوت دې، بغاوت.

ځما د خپلې ګرفتارۍ نه پس بیکې چې:

"چې زه ګرفتار کړې شوم نو د حوالات په ځاې د مخې سره د مچمانو کوټړې کښې واچولې شوم. چې د دې کوټړې د دروازه پرانستې شوه نو ډیر بدبوئي ځما په پوزه را ننوتو. دا بوئي د هغه لوښي نه را پورته کیدو چې د یو قیدي خارج شوې ګند پکښې پروت وو. ما د جیل افسر ته او وئیل چې زه خو داسې سخا ګنجې او بدبودارې کوټړه کښې پاتې کیدې نشم خوده را ته ډیر سوړ جواب راکړو چې تا ته دې معلومه وي چې نه یو جیلي یې او کوټړه نه یې د یکه کړم".

دا کوټړه ډیره یخه هم وه ولې چې د دې مخ د قطب په لوري وو او د نمر ناوړې چرې نه وو نوړلې. ما ته دیخ نه د بچ کیدو د پاره درې وړې وړې اوړې کمبلې او یوه دړئ راکړې شوه.

ځما په جیل کښې نیدولو نه لیس ځما نور ملګري هم ګرفتار کړې شول. شپه او ورځ به موږ په کوټړو کښې ساتلې

ورکولو فیصله اوکړه. ولې ما او عبدالقیوم د ضمانت نه ورکولو فیصله اوکړه"

لس ورځې پس خان ډپټي کمشنر ته وړاندې کړې شو چې ډپټي کمشنر دې لوړ دنګ او مضبوط پښتون ته اوکتل نو دا یقین یې نه راتلو کني دې عدم تشدد خوښوي خان دهٔ ته اوویل چې زهٔ عدم تشدد کښې د ګاندهي په لاره روان یم.

. ډپټي کمشنر ترنه تپوس اوکړو چې که تهٔ د ګاندهي په عدم تشدد نه وې روان نو ستا رویه به څنګه وه ؟ خان په جواب کښې د حوالات د ننه نه د اوسپنې دجنګلې سیخونه په لاس کښې اونیول او لکه د مومو یې را تاؤ کړل. دهٔ ورته اوویل چې ما به داسې کړي وو. د خان په په مخ دې وخت سنجیدګي خوره وه. انګریز ډپټي کمشنر چې د دهٔ طاقت ته اوکتل نو بیخي حیران پاتې شو. دې کښې شک نشته چې د غفار بادان د پهلوانانو بدن وو. دهٔ د ځوانۍ خپل زور او قوت د پښتنو په خدمت کښې خرڅ

جواب کښي او دپیل نسول چې دهغوی خپل سکول قائم کړې دې پښتنو ته د تعلیم حاصلولو د اتفاق جوړولو غږ ورکوي او د خلافت په تحریک کښې افغانستان ته هم تللې وو۔

ډپټي کمشنر په دې خبره داسې شو لکه چاودلې وي۔ دې افغانستان ته لاړ ؤ او تاسو بیا واپس راتلو اجازت ورکړو۔

د دې نه وړاندې چې پولیس وال ډپټي کمشنر ته ځواب ورکړي، وو غفار خان اګاه شو او دې دپیل چې تاسو را نه خپله خاوره او خپل هیواد قبضه کړې و او اوس را ته په خپل وطن کښې د اُسیدو اجازت هم نه راکوې۔ د راج افسر د یو پښتون دومره ګستاخي او تریخه ځنګه زغملې شوه۔ ډپټي کمشنر په غصه کښې او وئیل چې دې ځا د نظره پناه کړې۔ نه دهٔ ته د دې کاله سزا ورکوم دهٔ د خان په لور اوکتل۔ خان په انګریز افسر خپل نظر ور بنخ کړو هیڅ یې او نه وئیل۔ د دهٔ نه دِ سخت مشقت واخستې شي۔ ډپټي کمشنر زیاده کړه۔

اووم باب

# اے پښتنو تاسو ته وائم

(۱۹۲۱ - ۱۹۲۴ء)

په تکليفونو او مشکلاتو کښې سړې چرې څه زده کړي
زۀ چې په دې خبره سوچ کوم نو حيران پاتې شم
چې که ما د آسانۍ او فراغت ژوند تېر ولو او په جيلونو
کښې نه وۀم پاتې شوې نو ما به دومره څه نه وو
زده کړي۔ (حضرت باچاخان)

انګرېزانو به وئيل چې موږ باچاخان ته سزا ورکول نه غواړو۔ موږ لږ دومره غواړو چې هغه زموږ په خبره او فکر ځان پوهه کړي۔ خو د دې باوجود هغوئ د باچاخان سره د يو سياسي قيدي نه بلکه د يو ملزم قيدي سلوک اوکړو او د دوه مياشتو د پاره يې د قيد تنهائۍ سزا ورکړه۔

وُد. دې هلته يورپ کښې د برطانيې په فوځ کښې ميډيکل ډاکټر وو. دې پښتونخوا ته په دې غرض را بدل کړې شوې وو چې د وزيرو خلاف فوځي کاروايو کښې شريک شي. خو دهٔ د فوځي ملازمت نه استعفیٰ ورکړه ولې چې دهٔ د خپلو پښتنو رونړو خلاف د انګريزانو لاسونه مضبوطول نه غوښتل.

دوالړو ورونړو ديو بل سره يوه شيبه خبرې اترې اوکړې بيا ډاکټر خان صاحب باچاخان ته د چيف کمشنر يوه چټۍ ورکړه دا ليکلي وو چې د غفار خان د پاره ځما په زړهٔ کښې څه بدنيتي نشته او زهٔ د دهٔ سزا ختمولو ته تيار يم. دې په آزاد دې. دا ته به د سکولونو چلولو آزادي هم ورکولې شي خو دې به د کليوالو علاقو دوره نه کوي. دې به کلي په کلي نه ګرځي. که دې دا شرطې مني نو هم دغه وخت د خپل ورور سره تلې شي.

د پښتنو دې عظيم او ستر مشر د کمشنر په دې چټۍ نظر واچولو بيا يې د خپل ورور په لور اوکتل او دغه چټۍ يې

پوره کړی او دې د کمشنر شرط ته غاړه کیښودې ولې باچا خان دغه خبره او نه منله۔

بله هفته د دې خان په لاسونو او خپو کښې هتکړۍ واچولې شوې د ده په څټ کښې هم زنځیر واچولې شو او د ډیره اسماعیل خان جیل ته اولیږلې شو. او ده ته دخطرناکو مجرمانو درجه ورکړې شوه۔ د ده په مرۍ کښې یو شناختي کارډ اوبزان کړې شوې وو۔ په دې د ده نوم او سزا لیکلې شوې وه۔ او د ده جرم ـ " بغاوت" لیکلې شوې وو۔

د ډیره اسماعیل خان جیل کښې دې ځانته یواځې اُساتلې شو او هلته ده ته یوه ورځ کښې د شلو سیرو غنمو میچن کولو کار حواله کړې شو۔

د جیل د قاعدې مطابق دځان سره د خوراک ښیان ساتل جرم وو۔ یو پښتون قیدي ده ته لږه گوړه ورکړې وه۔ خان گوړه خوړه چې گارت ده ته اُوبې چې د جیل سپرنټنډنټ راروان دې.

ده په لږ وخت کښې گوړه خوړلې نه شوه نو په ...

د جیل سپرنټنډنټ راغی. ده سره یې یو څو خبرې
اوکړې او لاړو. نو خان کوره د کمبلې د لاندې نه راواخسته
او بهر یې اړناو کړه. ده په دغه ځاې دا فیصله اوکړه
چې زه به چرې بیا د جیل د قاعدو خلاف ورزی نه
کووم. غلا غلطي ویره پیدا کوي او ویره قیدي بونګه کوي
ده دا خبره څو څو واره لیدلې وه چې قیدیانو به د جیل
د قاعدو خلاف ورزی کوله او بیا به یې د سزا نه د بچ
کیدو په خاطر جیلر ته رشوت ورکولو. خان په خپل
عزت ډیر مئین وو. ده فیصله اوکړه چې زه به داسې کار
نه کووم چې ځما بې عزتي پرې کیدې شي.

د ډیره اسماعیل خان جیل کښې به بلاې رشوتونه
اخستلې شول. د دې جیل مشر افسر (سپرنټنډنټ) یو
انګریز وو او هغه یواځې انګریزې کښې خبرې اترې
کولې شوې. په دا وجه قیدیان د هغه په خبرو نه پوهیدل
انګریز افسر ټول اختیارات یو نائب جیلر ګنګا رام ته

دګنګا رام یو دلال غفار خان ته اووې چې که ته غواړې چې د تنهائۍ د سزا نه بچ شې نو ګنګارام ته څه ورکړه د لال ورته اووې چې ستا کلیوال پیښوري چې تا د غمو میچن کولو په کار ویني نو شرمیږي. دګنګا رام دلال غفار خان ته اووې چې که ستا سره پیسې نه وي نو دغه کلیوال به دې ورکړي او ته ګنګا رام خوشحاله کړه چې د مصیبت نه خلاص شې.

باچا خان ورته اووې چې اې هوښیاره بنیاد مه! ته دا سوچ ولې نه کوې چې ما د ضمانت ورکولو نه انکار کړې دې. زه ګنګا رام ته ولې رشوت ورکړم؟ صرف په دې غرض چې ګنګا رام را باندې مهربانه شي. دګنګا رام مهرباني او بنه سلوک څما نه دې پکار. که ما انګریز ته رشوت ورکړې وو نو زه به اوس آزاد ګرځیدم. ده دلال ته اووې چې ګنګا رام ته اووایه چې زه د بډو رشوتونو ورکولو سړې نه یم.

دخان د بډو رشوتونو نه ورکولو اثر نورو قیدیانو هم قبول کړو. بیا ورځ خان په جیل کښې د چیلې برخې

دَ پاره جيل کښې بې آخر زهٔ به الله ته خه خواب ورکوم
چې زهٔ د تاسو ته کورم او تاسو دې ميچن کوې.

خان ميچن کرخول پريښول او چې کله کارت دکمرې
نه اوتو نو دې بيا په ميچن کولو لګيا شو. کارت د بهر نه
د دهٔ ننداره کوله. هغه چې بيا لاغلو لږ په فهرهم شو
چې زهٔ ددته وائم چې اميچن مکوه او تاسو هغه نشان
ميچن کوې.

خان د کارت په دې خبره ورسره جختي کوتنهٔ ته کوته
اُنيوه چې کوزهٔ دغه کوتنهٔ کښې يو ډاکو او قاتل
ميچن کوي. که يو ډاکو د خپل عمل د پاره ميچن کولې شي
نو زهٔ د الله د پاره ميچن نه شم کولې ؟

خان بيا د ميچن کولو په کار اخته شو. يو څو ورځې
پس د يو بل کارت نه دې معلوم شو چې هغه کارت د جيل
د ملازمت نه بل چرته په ملازمت لاړ دې. دلې چې په
جيل کښې د پښتنو قيديانو شمېر زيات وو او هغوی د خان

چې د قیدیانو د رشوت نه ورکولو په وجه د گنگارام آمدنی کمه شوه نو د جیل سپرنټنډنټ ته یې اوډیل چې دا باچا په ورکشاپ کښې فساد پیدا کوي او چې څنګه دې دلته وي دلته به بدنظمي وي. خان وائي چې د گنگارام په دروغه شیطاني او شکایت انګریز سپرنټنډنټ ښه پوه شو څو انګریز د نظم او ضبط ساتلو په نوم هرڅه کولو ته تیار وي.

گنگارام د خان خلاف شکایت کولو په وجه په ناپوهه کښې د خان سره نیکي اوکړه او خان یې د مرګ نه بچ کړو. خان وائي چې دا د الله شکر دې چې زه د گنگارام په شکایت ډیره غازي خان جیل ته بدل کړې شوم. کني زه به هلته ډیره اسماعیل خان جیل کښې مړ شوې ووم. . . . هلته زما غابنونه بیمارات شوي وو. او زما وزن ډیر پونډه کم شوې وو.

د ډیره غازی خان جیل د پیښور نه په سهیل کښې په دري سوه میله فاصله وو. دلته به د پنجاب سیاسی قیدیان ساتلې شول. دلته د ډیره غازی خان په جیل

په دیوبند سره بحث مباحثه کوله او د دیوبند د مذهبي کتابونو مطالعه یې کوله. باچاخان د دې بحث او مباحثو او مطالعې په سبب ځېل علم کښې ډیره اضافه اوکړه د دې نه علاوه آب و هوا هم ښه وه او په جیل کښې خوراک هم ښه وو. د جیل افسر یو ښه مسلمان وو او د باچا خان به یې ډیر قدر او عزت کولو. د باچا خان د رنځور ځانې ایستلو د پاره د غانیونو یو ډاکټر راوستې شو خو هغه د پیسو اخستو نه انکار اوکړو. دې ډاکټر خان ته اوویل چې تاسو د آزادۍ کټلو د پاره کومه قربانې ورکوئ زه به د هغې څه مقابله اوکړې شم؟ زه بس دومره کولې شم چې تاسو نه فیس وانخلم.

کال ۱۹۲۳ء کښې د خان مور بي بي په حق اورسیده. دې ته هیڅ د دې واقعې اطلاع ورنکړه. دې دیر اخباری خبر په ذریعه پوه شو. دا د خان د پاره یو ډیر ګوزار وو. خان ویل چې مور ځما د لیدو ډیره ارماني وه. ځما مور بوډۍ وه او ډیره غازي خان ډیر لرې وو او اباسین زمونږ ترمېنځه حائل وو. هغې ځما د لیدو د پاره ډیر غوښتل

افسوس چې ماته دا علم نه وُو چې هغه د دې دنیا نه ډیره زر تلونکې وه."

زهٔ چې د جیل نه خلاص شوم او کلي ته لاړم نو خورم راته اووې چې کله م مور په حق رسیده نو د هغې په شونډو په اخري دخت ستا نوم وُو. هغې به بیا بیا پوښتل کوو چې غفار چرته دې؟ غفار څهٔ شو؟ او په دغه ډول هغې په شونډو ځما نوم یو ړو.

خان چې جیل کښې کوم درې کاله تیر کړل دې دوران کښې بهارت کښې د آزادۍ تحریک ډیر وړاندې تلې وُو. ګاندهي چې د کانګرس د کال ۱۹۲۰ء د ناګپور د غونډې د فیصلې تر مخه د عدم تعاون کوم تحریک شورو کړې وو هغه ډیر په تندۍ سره وړاندې تلې وو. د بهارت وکیلانو د انګریزانو په عدالتونو کښې کار پرېښو. طالب علمانو سکولونه او یونیورسټۍ پرېښوې او نوموړو هندوستانیانو خپلې تمغې او خطابونه والپس کړل او خبره دې حد ته را اورسیده چې کلیوالو هم د ټیکسونو ورکولو نه انکار اوکړ

چیلونو کښې آچول شوي دُو. د قدامت پرستو هندوستانیانو دا خیال وو چې گاندهي چې په حقه دې او د عدم تشدد په ذریعه هندوستان په مکمل ډول آزادي حاصلولې شي.

خو دې تحریک کښې ټول هندوستانیان په عدم تشدد ولاړ پاتې نه شول څنګه ښارونو کښې د تار او ټېلي ګراف وائرونه پرې کړې شول، د انګریزانو عمارتونه اوسوزولې شول، په افسرانو حملې اُشوې. د کال نولس سوه دوویشتم په پنځم فروری یو جلوس بې قابو شو او چوري چورا په یو کلي کښې یې دولس پولس وال اووژل.

گاندهي د تشدد په دې پېښه ډېر زهیر شو. هغه د عدم تعاون تحریک اُدرَولو، روژه یې اُنیوه اودهر قسمه عدم تعاون بندولو حکم یې ورکړو.

د هندوستان اولس د گاندهي په دې حکم گونه په خوله پاتې شو. داسې ښکاریدل لکه هغوی فتح ته نزدې شوي وو. خو گاندهي په خپله خبره کلک ولاړ وُو. هغه

اگر څو دغه ونیل چې که موږ نه یو نه دروغژن بنکاره
شو دا هیڅ خبره نه ده څو چې خپل ضمیر او خپل ځانته
ملامته نشو. د فرنګي حکومت ګاندهي ګرفتار کړو. او
مقدمه یې پرې جوړه کړه.

دا ځل ګاندهي د بغاوت الزام په خپل سر واخستو
او د فرنګي د حکومت په مخالفت کښې یې ډیر څه اوئیل
دا په اصل کښې د انګریز حکومت ته خبرداری ورکول
وو. ګاندهي شپږ کاله قید کړې شو او د عدم تشدد په
فکر ولاړ د هندوستان د اولس مزاحمتي تحریک مات
شو. ګاندهي جیل ته لاړو او د هندوستان اولس بیا
په قرار شو. څو د اولس په خپل متر باور نه ګوزریل
شوې دیه د وخت په انتظار وو.

غفار خان کال ۱۹۲۴ء کښې د جیل نه خوشې کړې شو.
دې په دې خبره خوشحال شو چې کله دې جیل کښې وو نو
د ده تحریک کمزورې نشوې نه وُو. لور مضبوط شوې وُو.
او اولس بنه په سره جذبه کښې وو. په اتمانزو کښې

اثر نه نېغ پاتې نشو. دۀ به وئيل چې اے خلکو تاسو لاړ شئ د حکومت د واکدارانو نه تپوس اوکړئ چې دوئ ځما پلار صاحب ولې تيدې کړې دې. لاړ شئ او لږه پښتنه خو اوکړئ چې دَ دۀ آخر جرم څه دې؟

اُتمانزو کښې باچا خان ته د سترې مه شې وئيلو په غرض يوه غونډه را بللې شوې وه چې په زرګونو پښتنو په کښې ګډون اوکړو. دې غونډه کښې د مردان، کوهاټ، پېښور او سوات د سيمو خلکو ګډون اُوکړو. د مومندو باجوړ نه هم خلک د خپل باچا د ليدو د پاره راغلي وو. دې غونډه کښې شريک کسان په دې خبره حيران وو چې باچا خان د پالسئ نه ځنګه نېغ نشو دوئ به وئيل چې الله تعالیٰ خپله باچا خان په حفاظت کښې ساتي.

د قيد په دوران کښې د باچا خان صحت خراب شوې وو. دَ دۀ اُوږدې راوتې وې. سترګې ېې ډوبې شوې وې ولې بيا هم دې داسې په نظر راتلو که يو شهزاده وي. غونډې غونښتل چې باچا خان دوئ ته خبرې اُکړي. خان د غونډې په غونښتنه پورته شو. دۀ په غونډې يو ژور نظر واچولو. لوې لوې

ورځو کښې يوه ورځ يوې امزرې د ګډو په وار حمله اوکړه. د دې امزرې په ګېډه ماشوم بچي وو او د حملې په دوران کښې د دې بچي پيدا شو. او دا مړه شوه او په دغه ډول د امزرې دا بچي د ګډو په وار کښې لوی شو دې به د ګډو په څېر څرېدو او بګېدو.

وخت تېرېدو او يوه ورځ يو امزری د ګډو په وار يرغل اوکړو او په دې خبره اريان پاتې شو چې د ګډو سره هم يو امزری هم منډې وهي. دې په دې خبره ډېر غصه شو ده دا اونيوو او د سيند غاړې ته يې راښکلو.

اوبو کښې خپل شکل ته اوګوره امزرې د امزرې بچي ته حکم ورکړو. نه ګډه يا ګډورې نه يې، ته امزرې يې تا ته د وېرې څه ضرورت نشته. د ګډورې په څېر بګېدل پرېږده د امزرې په څېر غړمبېږه"

خان بزه دمه اوکړه غونډه خاموشه وه. ده بيا سا راښکله او وې ويل چې اې ځما پښتنو ورونو ښاغلو تاسو ته ووېل غوارم چې تاسو امزرې يئ خو تاسو

او د دهٔ غږمبا د هندوستان د آزادۍ تحریک ته یو نه هیریدونکې قوّت او طاقت ورکړی و.

نن پښتون خوشحاله وو. ددې په خوشحالۍ تېلو خپلو سیمو ته واپس شول. د ددې باچا را ستون شوې وو. د ددې خندا کانې او خوشحالۍ په ځای شوې وې باچا د ددې د پارهٔ د روښانه مستقبل امیدونه او لوظونه راوړي وو.

اتم باب

# د پښتون ژوند هنداره

(۱۹۲۵ء)

> څوک وائي چې پښتون د مينې ځواب په مينه نه ورکوي
> چې څوک د پښتون سره مينه کوي د هغه سره دوزخ
> ته هم ځي ولې په زور او جبر جنت ته هم نه ځي
>
> ــــــــــ (حضرت باچا خان)

د انګريز د زور او جبر نه علاوه د خان په لاره کښې غټ
خنډ د تشدد او انتقام هغه ماحول وو چې د پښتون
په معاشره لکه د يو څادر ديره وو.

دا د يو پښتون د پاره نا ممکن وو چې د هغه بې عزتي

پښتون معاشره کښې هر يو کس څېلې وي. هر يو په وير اخته وي او دا د پښتون تر ټولو لويه بدقسمتي ده چې د معاشرتي او ټولنيز اتفاق او رورولۍ نه لرې لرې دي. د باچاخان د تحريک باوجود اتفاق د دوی نصيب نه شو. هر يو ځان ته په جدا لاره روان وي او هغه خپله لاره د هر بل کس د پاره غوره ګڼي او د بل غوره لاره او غوره خبره د ځان د پاره ناواني ګڼي.

دا د پښتون د مزاج نتيجه ده چې ماشومان بې پلرونو شول، ښځې کونډې شوې. کاونډي د کاونډي نه ځان په خطره کښې ګڼي او ژوند په هر قدم غير يقيني دی. د پښتون د شاعرۍ او رومانس لوئې هيرو هغه څوک دی چې انتقام يې اخستې شو. د غه د عزت او دروناوي نښه وه او د دې په وجه د پښتون د ژوند الميه جوړې ختمه نه شوه. او دغه الميه لا جاري ده.

د پښتون په مينه او نفرت کښې چې کوم تضاد دو

وجه پښتون د آزادۍ نه لاس په سر شوې وُو.

د یو اجنبي او نابوبره سړي د پاره د پښتون خوئي لوئي او کردار کښې په تضاد پوهیدل یو نا ممکن کار دې ولې دا د پښتون د کړه وړه رسم و رواج او قدرونو یوه نه بیلیدونکې برخه ده. د خان مشر خوئي غني خان لیکي " چې د پښتون سره مینه کول آسان کار نه دې. په پښتون ډیره پوهه پکار ده. دې د جنګ سره مینه کوي ولې د سپاهي جوړیدو نه نفرت کوي. د پښتون ارادې ډیرې اوچتې وي ولې بې خبره دې او دغه وجه ده چې پښتون په عام توګه ځلمي عمر کښې مري"

د بدل او تشدد په صحي روح پوهیدلو د پاره چې دَ پښتون د کلتور برخه جوړه شوې ده، غني خان د خپل هلکوالي د وخت یوه قیصه کوي. کومه چې دا ثرګندونه کوي چې د خان خاندان هم د بدل او انتقام احساس د اثر لاندې وو. د دې واقعې نه د پښتون طبیعت او مزاج په ښه ډول ښکاره کیږي.

په ورته امزرې درېيل. دې خپل کلک ملګري مرتضی وته وو د غني عمر دغه وخت دولس کاله وو خو ده ته ياد دي چې دې څنګه د عطا د مرګ خبر په اوريدو خوشحاله شوې ؤ. غني ليکي چې ما هميشه د عطا نه نفرت کولو. دې وائي چې:

" دې يو رنګين بنيادم وو موږ د ده د بهادرۍ او مهربانۍ قيصې اوريدلې وې ده يو ضعيف سړې وش لې ؤ چې څما د يو ملګري پلار ؤو زه هلک وم او ماته دا علم نه وو څنګه په دې بډها سړي د څلميتوب راسې د وينې بدل پروت دې. ده دا تخم رد مرګ د بدل ورکولو تخم) په ځوانۍ کښې کرلې ؤو. او چې عطا را څلمې شو نو ده دغه تخم اړيبلو. ولې چې د پښتون د وينې بدل د وينې بغير بل څه نشي کيدې"

دا بډها سړې په څلميتوب کښې زياتي خوږ او بې څخه وو او د څنه کمزورې او نادارو کسانو حقو نه بې خوړلي وو دې نادارو کسانو کښې ... عطا را څلمې شو ...

چې د دغه بډها سړي کار تماموك په كار ده. دې بنه خلمي وو، د ټکیف بنیادم وو، شرم زغمل او برداشت کول د ده د وس خبره نه وه.

او بس عطا خپل ټوپک را واخستو او د شرم هغه وجه یې ختمه کړه او دا حق یې په خلکو اُمنلو چې دې اوس د عزت او درناوي حقدار دې"

اوس د بدل کړي تاؤ شوي وه او عطا فرمندارا ه شوې وو. ګڼې پولسوالو او په سلونو کلیوالو د عطا قاتل مرتضی او د ده ملګري په غرونو کښې اُنیول. د غرونو په یکو کښې د ګولو یو باران وو او هر څوک د پناه په لټون کښې وو. آخر... د مرتضی سره ګولۍ ختمې شوې دې اُدرید و، ټوپک یې ګوزار کړ و او ځان یې پولس ته حواله کړو.

غني وائې چې دغه ماډيګر د پولس سکواډ دې اُتمانزو ته بوتلو کلي کښې غلغله وه. عطا مړ شوې دو او اوس مرتضی نوې هیرو وو. عطا بنه بنه خانان وژلي وو. څه اُدنشو که مرتضی یو ډاکو وو ؟ ولې دې

او په خپل تعریف او ستائنې پسې د مرتضیٰ توله درېند کړه. مرتضیٰ چې د عطا قاتل وو.

غنی ــ مرتضیٰ اُتمانزو کښې لیدلی وو. دۀ ته پولسوال تاؤ وو. خپو او لاسونو کښې پسې بیړۍ وې. د تندي د زخم نه پسې پټۍ تاؤ وه ــ مرتضیٰ د یو جنګ د باتور په شان روان وو. دۀ خندل او په لاره ولاړ تحقیق کوونکو سره به پسې ټوقې ټقالې کولې ــ نن د مرتضیٰ ورځ وه.

تلو تلو کښې مرتضیٰ یو ځائې تول پریټ را ایسار کړو لاس پسې پو دته کړو او حکم پسې ورکړو چې په ټولو ولاړو کسانو د شربت اُخښکلې شي. ولاړ کلیوالو لاسونه پرېړ وهل. پولسوال هم په آرام اُدریدل او یخ شربت پسې اُښکلو.

او دغني مخ د خوښۍ نه روښ شو مرتضیٰ خوځما، رشته دار وو؟ ما چیر په ویاړ سره خپلو ملګرو ته او ئیل چې مرتضیٰ ځما دَلرې رشته دار دے.

غلي ته یاد دي چې پرړه موده پس. کلونه پس زه دَ ځمي یوه شپه اور ته ناست وم کرمیدم چې ما څه آواز واوریدو. چې ملګریه چرته یې ؟

ما دروازه پرانسته. دا مرتضی خان وو. په بد حال د مخ نه یې دوړې پریوتې نو یک یې غاړې ته اچولې وو. غني وائي چې دې به بل چا خپل ځائې کښې نه وو پریښې خو ما ورته دروازه او خپل زړه پرانستو ولې چې ما دې پیژندو او زموږ د پلرونو او نیکونو هم پیژندګلي وه.

موږ اور ته ناست وو او ما د مرتضی نه د هغې خبرې تپوس اوکړو چې مرتضی! عطا خو ستا ډیر ښه دوست او ملګرې وو نا هغه ولې وژلې وو ؟

مرتضی : هغه ځما نږه وو ــ چې ما نږ نه نفرت کولو او اوس هم نږ نه نفرت کوم زه مفرور وګرم او د نورزنو ملکو یوه ډله راسره وه. خوزه په خپل نږه ډیر ګران

غوښه ووم، د دهٔ وینه ووم، دَ دهٔ دَ ورور ځوئې ووم او ما به دَ دهٔ د مینې ځواب په خلوص او لحاظ ورکولو.

یو ماښام دهٔ ما ته پیغام را اُلیږلو. زهٔ سختې یخنۍ کښې د خپلې پناه ګاه نه دَ نیا د انغرېي تودې غاړې ته اُرسیدم. ځما ترهٔ ما ته اُوئیل چې عطا ځما د دښمنانو سره ځما د وژلو سازش جوړ کړې دې. دې ځما تر خپو پرېوتو، په ژړا شو. دهٔ ما ته خواست اُوکړو چې زهٔ دې بچ کړم، د خاندان او کورنۍ عزت محفوظ کړم ـــ خو ما د داسې کولو نه اِنکار اُوکړو.

بیارم ننديار (د ترهٔ ښځه) ما ته ډېر په خپګان سره اُوکتل او تپوس ېې را نه اُوکړو چې ولې ته به د خپل پلار د ورور د قتل تماشه کوې؟ ننديار را نه اُوئی چې هغه (ستا تره) ضعیف او سپین ږیرې دې. ته ځلمې او صحت مند يې. دَ دې ټبر او خاندان په تا هیڅ حق نشته چې ستا پرورش ېې اُوکړو، تا ته ېې نوم او عزت درکړو

کولو لوظ اُکړ و۔

غني: ته د هغه نه يريدې ؟

مرتضیٰ: زهٔ د هيڅ څه نه هم يريدلې نه يم ماسوائ د دې نه چې په څه د نځ مړ نشم۔ خو يو مفرور هميشه يريږي ولې چې د هغه دښمنان ډېر وي او د هغه دَ سر قيمت ورکولو ته هر وخت تيار وي هرڅه چې وي ما د عطا وژل نه غوښتل ولې ترهٔ مې څه ګنجائش پرې نه ښود۔ هغه زه دې کار ته مجبوره کړم۔

دې اُرپيدو۔ د دهٔ په نسواري سترګو کښې د غم اثر را اُوچت شو۔ ده اُوې چې ما غوښتل چې ځما او دَ ده تر مينځه لويه فاصله پيدا شي ولې زهٔ داسې کولو کښې چرې کامياب نه شوم۔ عطا هميشه ځما په ذهن سور وي، ځما په فکر کښې اَوړي راوړي، هغه ځما سره خبرې کوي، خاندي، ټوقې کوي مرتضیٰ زيا ته کړه چې، غوښتل چې زه خپل ترهٔ هم ختم کړم خو ما داسې اُنکړې شول۔ ځما ترهٔ ډېر عمر ژوندې وو او ځما ضمير ډېر عمر

په ځما ترګه وړلې دي. خو لس پرېږده ياره دا خبره رازه
چې څه سان سندرې وائورو.

غني خپل ستاسي را واخستو او څه غمژن سازبې اوهلو
موږه دواړو د اوس د لمبو په لوس اُکتل او نورمو هيڅ
او نه وُېيل. دَ دې ضرورت هم نه وو. ولې چې ما ته
پته وه چې زه هم پښتون يم.

د پښتون دَ زوروَرو او سخت ځ لاندې د دهٔ غاوره
فطرت او ساده ضرورت پروت وي. غني ښکي چې غريبي
ېې په سر واخلي نو د بل نه د غوښتنې په ځاے به غلا
کول ښه اُښکاري ولې چې دې يو سړې دې چينجي
نه دې. چې دې د خپلې ېې مځې ښځې شليدلې ځامو
او د خپل ماشوم وږي سترګو ته ګوري نو اور بېرې
بل شي.

دې تهوېک ترغاړه کړي. دې د الله تعالیٰ د غصې او
قهر او انسان د نفرت نه يرېږي نه ولې د نادارۍ او

ه پاره موزون دې۔ دې وائي.

" چې راځم چې د دين واده نه ورشو. دغه پښتون زمونږ په لور چې روان دې۔ ميانه قد لري۔ دهٔ اوږده اوږده وېښتان پرې ايښي، ښه ستهرا دي، تيل يې پرې نکولي او کومنځ شوي دي۔ د سر نه يې داسې سور رومال تاؤ کړې لکه چې ده د کسرئ تاج په سر کړې وي۔ دهٔ په وېښتانو کښې يو ګل ټومبلې او سترګو کښې يې رانجه اچولي دي۔ ده شونډې په دنداسې سرې کړي دي۔ د دهٔ په لاس کښې ستار دې او په اوږه يې ټوپک پروت دې۔ دې به تا ته ښځې په نظر راشي ولې سترګو ته يې پام اوکړه دا صفا دي، دې کښې زړه ورنوب ميړنتوب دې دا په ويره نه پوهيږي "

د پښتون د ميړنې قبيلې فرزند جنګ کښې چرته تيښته نه کوي او د يرې په وخت خندا کوي او سندرې وائي. دې به ډير زر جنګيده جنګيده کښې مړ شي ولې چې دې راځي په ويره نه پوهيږي

نه ییلبته اُکړي.

د ځلمي مور خپل ځلمي ځوئې ته نصیحت کوي ـ چې بزدل مړ شي خو چغې یې ټول عمر یاد ولې شي او دغه هلک او ځلمي ځوئې په دې پوه شي. چې چغې وهل دَ میړتوکار نه دې ـ دهٔ ته ډیر داسې ندرونه ورکړې شي چې د ژوند نه ډیر قیمتي دي او په دا وجه هغه نه خو د وژلو ډړه کوي او نه د مرګ نه یره کوي ـ د دهٔ د پاره رنګینې جامې او بداېسي موسیقي اوریدل منع دي ولې چې دا لاس او منه کمزوري کوي او سترګې نرموي ده ته دا سبق ورکولې شي چې باز ته کوره او بلبل پریږده

پښتون د قبیلې مرضه ته ځان حواله کوي چې قبیلې ته ځان حواله کړي. نو خپل ځان یې باقي نه شي او په دغه ډول دې د ژوند نو ټولو لوې فن زده کړي دا د پښتون د ژوند فن دې ـ" ښکله اُوژنم او ښکله مړ شم" او چې کله دې ذا فن زده کړي نو دې یه صحي معنو

ده په خندا خندا ځان ورکړ و. او بس دې نور څه نه غواړي. غني وائي چې یوه ورځ دې لاړ شي او بیا کورته والپس را نه شي.

ده په خندا خوشحاله یوه کوله زغملي وه چې د ده خپل ورور تربور او د قبیلې وګړي په ده چلولې وه. د دهٔ بنځه د یوې لچې د خوشحالۍ او د ټول عمر د ډیلي ژوند د پاره کونډه پاتې شي. دا کونډه د خپلو دوه ځامنو د پاره د ده ټوپک او سناړ زوړ نه ساتي او چې کله دا چرته مازیګري کښې د مینې او محبت سندرې واوري نو دې خپلې رنې رنې او ښکي بهوي چې د چا نظر پرې بنځ نه شي.

دا کونډه د خپل مشر ځوئې سره ډیره مینه کوي ولې چې د دهٔ جوسه د پلار په څیر ده. دې د خپل کشر ځوئې سره مینه کوي ولې چې دې د پلار په څیر ښاندي. دا ینیمان ځلکان چې د مور نه نیوس اکړي

په موقع وئیل شوي وه چې د دهٔ پلار په کښې وشل شوې وو ـ او د پلاس درې رونړه او ښځه ترېوران په کښې وژل شوي وو.

" دا یوه مخروسه ، بې خونده او بې رنګه
ورځ وه دا د سپرلي آخري ورځ وه ـ "

غني وائي چې که د ې پښتون بې عزتي او سپکاوې اوشي نو د هغه سره د ګولۍ چلولو علاوه بله څه لاره نشته ولې چې که هغه داسې نکوې نو هغه به د رونړو په نظرونو کښې پرېوځي ، پلار به ورلیسې ملنډې کوي خوېندې به د هغه په نه کتو خوشحاله دي او خپله ښځه به ورته سپک ګوري او ملګري به هم ورته څهٔ درونډ نظر نه کوي.

دې به ضرور ګولۍ چلوي ـ د عطا د پاره بله څه لاره نه وه پاتې ما سوائې دې نه چې د خپلو خلکو بیغوروونه ختم کړي. مرتضیٰ د خپل خون ملګري عطا

د مسخ شوي او وران شوي احساس ښکار شي او په دې وجه دې ځېر ند وران کارې ته مائل کېدې شي. د دغه په دې کمزورۍ انګرېزان ځېر ښه رسېدلي وُو. د راج د فاوورډ پالیسۍ یو اهم مقصد دا وُو چې پښتون خپلو کښې د یو بل خلاف اودیشلې شي. غني وائي چې د هندوستان د حکومت د سیاسي محکمې مقصد ما سوائې د دې هیڅ نه وو چې د خیبر بازانو ته د کارغانو او لیوانو سپکې لارې چارې آښودلې شي. دې سره د قبیلو کمینه او حریص کسان را مخکښې شول او اهمیت او اثر یې جوړ شو.

د انګرېز دا طریقه ښه کامیابه شوه. پښتون د یو بل مرۍ پریکولو کښې بوخت وُو. هر خواه وینه او تیاره خوره وه. د انګرېز باچائي محفوظه وه او پښتون خوار وُو.

غني وړاندې وائي چې د صدو راسې را روان د بدل او انتقام په ماحول داسې څه اُشول چې د معجزې نه

او ... په کښې د زغم، برداشت او حوصلې غیر معمولي قوت او توان موجود دی. د باچا خان کار دا ؤ چې پښتون وګړي ته تعلیم او پوهه ورکړي. د تعلیم په برکت به ګډه ته تشدد او انتقام داسې پاتې شي لکه د یوې ونې ته پریکړې څانګه را پریوځي.

"غني وائي چې د باچا خان سیاست په حقیقت کښې د پښتنو سیاست دی"

باچا خان پښتون پیژندو او پښتون بلچا خان پیژندو چې څو پورې یو سړی پښتون نه وي هغه په پښتون نشي پوهیدلی. ته چې هغه بل وخت اُوینې، ته د هغه نسوارې سترګو کښې اُګوره نو ته به د پښتون په سیاست دومره پوهه شې چې زکه هومره پوهه په لوز باڼو کښې نه شم درکولی.

باچاخان پدې حقیقت رسیدلی و چې مینه او اخلاص یو سیکنډ کښې څه پیدا کولی شي هغه بمونه یوې صدۍ کښې تباه کولی نشي. د مرتبوب مې لاډ هغه ده چې سړی د پښتوني وي. یو صنا سټرا خوب د ژوند نه غوره دی. دا هغه شان دي

## نهم باب

# پښتون او د خدائي خدمتګار فلسفه

(۱۹۲۶ء — ۱۹۲۹ء)

که یو مسلمان یا ځما په خیر پښتون په عدم تشدد (ایمان نشي نو دا څه د تعجب او حیرانتیا خبره نه ده دا څه نوې عقیده نه ده څوارلس سوه کاله اګاهو زمونږ د پیغمبر علیه السلام په دې اصولو او عقیدې عمل کړې وو او د هغې نه روستو په دې هغه چا عمل کړې دې چې د ظالم نه ځان خلاصوي خو زمونږ نه دا اصول هېر شوې دی او چې کله ګاندهي جي په دې (عدم تشدد) عمل شروع کړو نو زمونږ دا خیال وو کني هغه یو نوې کار کوي.

(حضرت باچا خان)

[illegible]

غدر دهٔ ته بنه یاد ؤو. دا د پښتنو رسم دې چې دوې بخپلو مړو خیر خیرات او صدقه ورکوي د بهرام خان په مرګ کې ملایان د خیر خیرات په طمع را غونډه شول ولې چې بهرام خان څه معمولی خان نه ؤو.

غفار خان د خپل پلار د مرګ په موقع اعلان کړې وو چې زهٔ به د خدائي بخښلی پلار په نوم دوه زره روپۍ صدقه ورکوم. ده د غم څپلي کلیوالو ته ښوئې اوکړه چې دا د خیرات رقم زهٔ ملایانو له ورکړم او کنه سکول ته بې ورکوم.

هغوی په یو آواز اووې چې سکول ته بې ور او بخښه.

بناغلي الله بخش یوسفي خپل کتاب "صوبه سرحد او جد و جهد آزادي" کښې هم د دې واقعې په بابله لیکي چې کله د باچا خان د پلار حق اُرسیده او په اديره کښې ملايان د سخات نه کیر چاپیره کینناستل نو باچاخان هم د دوی په نولي کښې ناست وو. چې کله ملایانو صلحبانو یو بل ته بخښل را بخښل شروع کړل او باچا خان ته وار د بخښلو را اورسیده نو ده اووې چې

سم دم چاودلي وي. او د دهٔ خلاف ېې پروپيګنډه شوروکړهٔ چې باچاخان وهابي دې. هغه او دغه ولې باچاخان د پښتو په ميته دومرهٔ مست وو چې داسې پروپيګنډو ته يې هېڅ پام نه کولو.

دخپل پلار د مرګ نه روستوخان، د دهٔ خوربي بي او نور ج ته د تلو فيصله اُکړه. دا د يو مسلمان د پاره مقدسه فريضه ده او په هغه مسلمان فرض ده چې مکې مدينې ته د تلو د تلو مالي توان لري. باچاخان يو باعمله او سوچه مسلمان وُو. دې ج ته په داسې وخت لاړو چې هلته مکه کښې د مسلمان قامونو د نمائندګانو يوه غونډه کيدونکې وه. دهٔ په غونډه کښې د اسلام د مختلفو شخصيتونو سره اُليدل خو د مذهبي خبرو په حوالې سره د مسلمانانو تر منځه اختلافاتو دې ملوسه کړو.

دې يو وارې بيا د صدمې ښکار شو. د باچاخان بيګم صاحبه يروشلم کښې د اوچتو پاوړو نه را پريوته او په حق اُو رسيده. خان د وادهٔ نه کولو فيصله اُکړهٔ . ده

ده او په دغه چول ده دَ کونګرتوب ثروند خوښ کړو۔

د پښتنو دا عظیم خان په خپل تول پوره اختو۔ دَ کاندهي په شان دَ خپل جذباتو د قابو لاندې ساتلي شول ده خپل ټول قوت پښتنو ته په تاریخ کښې د یو لوړ او جائز مقام ورکولو د پاره په کار را وستل۔

باچا خان هندوستان ته د واپسۍ په لاره فلسطین، لبنان شام او دَ ایران دوره اوکړه۔ ده اسلامي هیوادونو کښې قوت او توانائي اولیده۔ دې هیوادونو کښې نوي نوي اصلاحات کیدې شول۔ دا هغه وخت ؤو چې مسلمان کښې د بیدارۍ لهر په خوریدو راغلي ؤو۔ ده محسوسه کړه چې د اسلامي هیوادونو قامي تحریکونه د هندوستان په لوړې کوږي ــ هندوستان د انګلیسي شهنشاهیت دَ کوټ تیکه ده، که چرې دغه تیکه لرې کړې شوه نو مینځني ختیز کښې به د انګریزانو قوت او طاقت را نسکور شي۔ او دَ دې نه پس به دَ فرانس دَ قوت دَ را نسکوریدو وار هم راشي۔

د مینځني ختیز د ...... نه راپس خان د نوي فکر

او د تعليمي، أدبي او سياسي اصلاحاتو په پروګرام يې لاس پورې کړو.

دغه پروګرام کار دا و چې ښځې په زنانه معاشره کښې د کردار ادا کولو جوګه کړې شي. باچا خان د زنانه وو د پردې روايتي نظام چرې نه خوښولو ولې چې د پردې په وجه مسلمانې زنانه معاشرې کښې د يو فعال او تند کردار ادا کولو جوګه نه پاتې کيږي. دغه د زنانه وو دپاره کېرنه اوکړه او هغوی ته يې د پردې نه د بهر راوتو غږ ورکړو. د دغه خوځښت د دغه په تحريک کښې ورګډې شوې او کال ۱۹۳۰ء پورې هغوی د صوبې دورې شروع کړې او تقريرونه به يې کول ــــــ داسې په زړه ورتيا يې کار شروع کړو چې د اسلامي ملکونو دارالخلافو کښې به هم زنانه وو داسې نه وي کړې او بيا د پښتنو په غير تدامت پرسته ټولنه کښې خو دا د غير معمولي جرأت او زړه ورتيا کار وو.

د کاندهي جي هم دا پخه عقيده وه چې د عدم

صدارت بېګم سروجني نيډو ته حواله کړه. دا يوه اُوچته شاعره وه او د قيادت او مشرۍ کولو صلاحيتونه يې لرل. د دې مثال د هندوستان زنانه ډُوته حوصله ورکړه او هغوی د سياسي سرګرمو د پاره د خپل اهليت مظاهره او ښکاره کولو ته وکړه.

د باچا خان د ډېرې مودې راسې دا اراده وه چې د نوي فکر د خورولو د پاره پښتو کښې يوه رساله اُباسي ده ته دا علم وُو چې پښتون د نړۍ نور سيمو ته لاړ شي او هلته آسنوګن شي نو دې ډېر ند د هغه ځاې ژبه خپله کړي او خپله پښتو ژبه هېره کړي. خپلې پښتو کښې دننه لوستي پښتنو د اُردو او انګريزۍ د پاره پښتو شا ته کړې وه دې حالت دې پرېشانه کړې وو. ده خپلې پښتو ژبې کښې د شوک لور، رزمي او بزمي شاعرۍ لويُ ذخيرې سره ډېره مينه لري. پښتو ژبه کښې چې د تصوّف په بابله کومه شاعري شوې ده دا برصغير کښې د نورو ژبو د شاعرۍ مقابلې کښې ډېره خونه ورکه

شوې ده د برصغیر نورې ژبې د هغې سوچ هم نه شي کولی. چې کوم وخت پښتو ژبه کښې ترقي یافته شاعري کیده هغه وخت د اردو ژبې د سره هلو وخه وجود نه وو. د باچا خان دا خیال څه غلط نه وو

کني پښتو ژبه کښې د یوې رسالې په برکت به د پښتو په خپلې ژبې ویاړ کول په ځائې کړې شي او دې سره سره به د اصلاحاتو پیغام هم ټولو پښتو نه اورسولې شي.

چې پښتون نومې کومه رساله جاري کړې شوه دا نه یوائې پښتو نخوا کښې سمدستي کامیابه شوه. دا یورپې هیوادونو او امریکې پورې اورسیده. ولې چې هلته هم کن شمیر کښې پښتانه اسنوکن وو. دوستي پښتانه د پښتون په جارې کولو ډیر خوشحاله شول ولې چې د دې په ذریعه د دوی انفرادیت په ځائې شو او دوی کښې د خپل نسل د لوړوالي او عظمت احساس را بیدار شو د مدیر د قلم د څوکې د لاندې په تنقید د دوی

که خاڼې نسنې مې په قبر وې ولاړې
که غلام مریم راځمه نوکه یې لاړې
چې پخپلو وینو نه یم لمبېدلې
په مامه پلیتوی د جمات غاړې
یا به دا سپېره وطن باغ عدن کړم
یا به کړم د پښتنو خونې ویجاړې

" پښتون " کښې به د صحت د اصولو ، اولسي مسئلو او اسلامي قوانینو په بابله مضمونونه چاپېدل . دې رسالې کښې به بیا بیا د زنانه وُو په پردې ټکو نه کېدل . یو لیکونکي لیکلي وُو چې د پښتنو په سیمه خو رنګیزې او ښې ښځې او ښائسته جونه په راغونو او غرونو کښې خشاک را ټولوي ، دا په خپلو سرونو وړي ، فصلونه رببي او د جنګ په میدان کښې د خپلو نارینه وُو مدد کوي او چې چرته جونه داسې درنې ذمه دارۍ تر سره کوي هلته خو د پردې کولو سوال

وُ چې د پښتنو نه سيوا دَ ښځې هيڅوک دښمن نشته يوائې پښتون داسې وګڼې دې چه خپلې زنانه د دباؤ او فشار لاندې ساتي. دې پښتون ته غږ ورکړې وُو چې اې ځما پښتون ورور! ته خو د ځان د پاره آزادي غواړې دا آزادي ته خپلو زنانه وو ته ولې نه ورکوې ؟

دې ټول وخت کښې د برصغير په نورو سيمو کښې دَ هندوستانيانو او انګريزانو ترمينځه ناؤ تريخوالې زياتيدو نوې وائسرائې لارډ اروِن (LORD IRWIN) دَ هندوستانيانو د خود مختاره حکومت د غوښتنې په جواب کښې د کانګريس يا دَ آولس د نورو نمائندګانو سره د ليډو کتو نه انکار کړې وُو.

لکه څنګه چې د ښاغلي اِروِن يو انګريز ژوند ليکونکي رائې ښکاره کړې ده. چې وائسرائې کښې د افسوس تر حده د مهارت کمې وه، وائسرائې د هندوستان د نمائندګانو سره د خبرو اترو په ځائې د هندوستان د قسمت په بابله ده ته د مشورې ورکولو په غرض يو خاص

دکال ۱۹۲۸ء په فروري کښې د سائمن کمیشن غړي هندوستان ته را اُرسیدل خو دَ دې کمیشن په مکمل ډول بائیکاټ اُکړې شو او دغه ټول کال درنې درنې مظاهرې اُشوې. کله کله به دغه مظاهرې پولس دَ تشدد په ذریعه ماتې کړې دَ پښتونخوا کاوَسنډې صوبه پنجاب کښې ډیره بې قراري وه. دَ دې صوبې ځلوړ ښیته کلنې مشر لجپت رائې لاهور کښې پولس اُوهلو او ډیر زیر مړ شو او دَ دهٔ دَ مرګ نه یو څو هفتې روستو د ۱۹۲۸ء دسمبر کښې د لاهور د پولس اسسټنټ چیف اُوژلې شو. بنګال چې هلته هم زبردست مزاحمت شروع شوې وو. سبهاش چندره بوش د انقلاب د پاره کار کولو.

د اړې کړې په دې وخت کښې د دغه کال دسمبر کښې مسلمانانو مشرانو د بنګال دارالحکومت کلکتې کښې یو کانفرنس را اُبللو. باچاخان په دې کانفرنس کښې ګډون اُوکړو خو دَ غونډې شور شغب دې ډیر مایوسه کړو. د کانفرنس صدر په خپل اختتامي تقریر کښې په هندوانو

به رد اُوشیل. یو بل پنجابي په دې موقع چاقو راُویستلو او په دغه حمل دغه غونډه کډه وډه شوه.

د کانفرنس د حال احوال په لیدو باچا خان دلګیر شو. دَ ده په خیال دغه بڼه مهذبه انساني او اسلامي طریقه نه وه. چې ده ته معلومه شوه چې د کانګریس غونډه هم په دغه وخت کلکته کښې کیږي. ده دغې غونډې ته دَ تګ او د ګاندهي د لیدو فیصله اُکړه.

باچا خان چې هلته ورغلو، ګاندهي غونډې ته تقریر کولو او په دې دوران کښې یو ځلمي به د ده نه پرله پسې پښتنې کولې. ګاندهي د ځلمي په دې پُښتنو په تاؤ کښې نه راتلو. ده به اُخاندل او بیا به بې خبرې شروع کړې. د ګاندهي صبر او زغم په باچا خان اثر اُکړو دې چې کله خپل کانفرنس ته بیا ور واپس شو نو ده د کانفرنس صدر ته ځان ته اُووې چې ځما خیال دې چې که زمونږ مسلمان قیادت د صبر، استقامت او زغم او برداشت نه کار واخلي نو د آزادۍ دا تحریک

د کانفرنس د صدر دې خبرې باچا خان ته لکه دَ
لړم ټک وډکړو. خان په دغه وخت کانفرنس پرېښو
او کودته واپس روان شو خو د گاندهي مثال دهٔ ته
یاد شو. په دهٔ دا خبره څرگنده ده چې تشدد او
خپلو کښې جنگ جگړو دَ دهٔ خلک کمزوري کړي
دي.

یو څو میاشتې پس لکهنوٴ کښې د کانگریس یوه بله
غونډه کښې باچا خان د گاندهي سره بیا ملاقات اُوکړو
دهٔ د جواهر لال نهرو سره هم اُولیدل چې د هندوستان
د قام پرست تحریک ځلمی مشر وُو او د باچا خان
دَ ورور ډاکټر خان ملگرې وُو دوی دواړه انگلستان
کښې د طالب علمۍ د وخت نه دوستان وُو باچاخان
جواهر لال نهرو ته چې روستو د هندوستان ړومبې
وزیر اعظم اُوټاکلې شو د پښتنو حال احوال تیر کړو
دې ملاقات سره دَ دې دواړو مشرانو تر مېنځه دمینې

باچا خان د لکهنو نه نیغ دلی ته لاړ او هلته یې د نورو تمام پښتو مشرانو سره ملاقات وکړ. دغه هر ځای کښې زړه نو زړه د آزادۍ حاصلولو جذبه اولیده. د کال ۱۹۲۲ راسې چې هندوستانیان د راج تخته کلتي کولو کښې قریبًا کامیاب شوي وو. دوی انګریزانو ته دا خبرداري ورکولو چې خو پورې د خود اختیاره حکومت څه تشکل تاسو نوې منلې، یوه بله جګړه ناګزیره او ضروري وه. انګریزان دې وخت کښې یواځې یاتي شوې وو. او د هندوستانیانو بې قراري سیوا کیده. دوی د آزادۍ غوښتنه کوله او د دې د پاره قربانو ورکولو ته هم تیار وو.

دَ نهرو او سبهاش چندره بوس په شان مشران دَ راج ګرولوان ته د لاس اچولو په حق کښې وُو. ولې ګاندهي په دوی نه وئیل چې لښ د انتظار ضرورت دی او انګریز ته لښ نور وخت ورکول په کار دی چې اراده یې ښکاره شي. دګاندهي دا هم خیال وُو چې هندوستان لا دَ

اخره پورې جنګ کولې شي.

خان دَ ازادۍ حاصلولو مرام د ځان سره په دې غرض یوړو چې پښتانهٔ د هندوستان دَ معاملو نه خبر کړي او د هندوستان په سیاست کښې ېې راګډه کړي. دهٔ دَ ګرمۍ سختې ورځې د پښتونخوا د ګلو په دورو تېرې کړې دهٔ خپل اولس ته اودې چې تاسو خپل نظر دَ خپل کور او خپلې پولې پټې نه بهر اوباسئ خپلو کښې دښمنۍ پرېږدئ او په یو اتفاق شئ او دَ هندوستان نه د انګرېزانو په ایستلو کښې خپل کردار ادا کړئ تاریخ ګواه دې چې دا دَ بلچا خان دکوشتنو نتیجه وه چې پښتون د باچا خان په مشرۍ کښې دَ هندوستان په آزادۍ کښې یو نه هېرېدونکې کردار اولوبولو.

د ټولو پښتنو په خېر د خوشحال په خیال، صحت پسرلي کښې نه، خزان کښې وده مومي. دا هغه وخت وي چې ستورګه په سهیل کښې، بحیرهٔ عرب کښې د وبېږي

نجي هوا کاني راوړي. باچاخان ځان د جنګ د پاره تيار محسوسولو. خو دا جنګ لا د انګريز سره نه وو ده دا ليده چې يو ډير اهم وخت را روان دې او ده دا اراده کړې وه چې کَ دې وخت په را رسيدو به ځما اولس د مقابلې د پاره بنه تکړه تيار وي.

باچا خان يو ماسپخين اُتمانزو کښې يوې درنې غونډې ته د تقرير کولو په وخت هغه ورېې ورېې وجې په ګر ته کړې د کومو په وجه چې پښتون د يو بل ګريوان څيري کوي. ده اووې چې" ځما رونړو پښتنو تاسو کښې دومره قوت ضرور شته چې څوک مو وهلې نه شي ولې ستاسو خپلې بې اتفاقۍ چالاک او عيار انګريز ته دا موقع په لاس ورکړې ده چې تاسو بې بسه کړي او تاسو سپک کړي. خو کَ دې حالاتو د پاره مونږ انګريز ذمه وار نشو ګرځولې. دا څه چې کيږي دا مونږ کَ ځان سره خپله کوو خپل عمل د لارې مل وې. مونږ کَ خپل

او یورپ په بابله اوریدلي دي. د دغه هیوادونو اولس کیدې شي زیات مذهبي فکر او رجحان نه لري ولې هغوی ټول په خپل وطن او په خپله خاوره مئین دي، د خپل اولس او تمام سره مینه لري او اولسي بیداري لري.

تاسو لږ د هغوی په ترقۍ نظر واچوئ بیا د خپل ځان په لوري اوګورئ. مونږ خو لا په خپلو خپلو هم د اوریدو جوګه شوي نه یو د هغوی د ژوند معیار ته نکوو پام اوکړه او بیا د ځان په لوري پام را اوګرځوئ. فرق صفا جوت دي.

باچا خان زیاته کړه چې که مونږ د تباهۍ او بربادۍ په لاره سم شوي یو نو دا ځکه چې نه خو مونږ د خپل وطن او خپلې خاورې سره مینه لرو او نه په تمام مئین یو. یو لوی انقلاب را روان دی خو تاسو لا د دې نه خبر هم نه یئ.

زه چې اوس اوس د برصغیر په دوره تلی وم

هم د قام او د اولس د خدمت څخه جذ به نه لري

دوی د "قام" د تورې په معنیٰ هډو د سره

پوهیږي نه !!

باچا خان اخوا دیخوا اُکتل، دَ دهٔ په سترګو

کښې یو پرق وُو د دهٔ په خبرو لویه غونډه داسې

خاموشه او په قرار ناسته وه لکه چې هډو څوک

موجود نه وي. یو یو کس په خپل ځائې ناست ؤو

او هیڅ حرکت په نظر نه راتلو ـــ لوئې او ستر باچا خان

خپل تقریر جاری اُساتلو.

"ګوره ځما پښتنو رونړو او ملګرو ځما مشرانو او

کشرانو زهٔ وایم چې ستاسو نه خپل ځان قربان کړم

ستاسو بلاګانې واخلم او ستاسو ټول بوج زهٔ خپله

اُوچت کړم. اې ځما د زړګي سرونو تاسو نه څه علم

نشته چې انقلاب څه نه وائي ؟

دَ انقلاب مثال لکه د سیلاب دې. یو قام دَ انقلاب

په وجه خوشحالیدې شي او دَ انقلاب د لاسه ختمیدې

نه فائده اوچته کړي، دا قام بناد. شي او آباد شي. که اولس بیدار وي او د سیلاب دپاره تیار وي نو چې کله سیلاب را شي ټول قام د دې سره سره روان وي خو که اولس اوده او خوبولې وي، په دښمنو کښې بوخت وي، د یو بل نه ویزاړ وي د قام، وطن او خاورې مینه نه لري نو دا سې قام، د قام دا سې وکړي د سیلاب په ځپو کښې لاهو شي، برباد شي او تباهي یې نصیب شي او ورک او سپک شي. آیا تاسو خپل سپکیدل، تباه کیدل او ورکیدل غواړئ؟

باچا خان د یو ساعت د پاره دمه شو، ساه یې واخسته او پښتنو ته بیا مخاطب شو ـ ده اودې:

"اې ځما غریبه او نادارهٔ اولسه، په دښمنو کړکو او کینو کښې لیتو پیتو پښتنو، په تن بر بنډو، په خپو بې آبله پښتنو رونړو تاسو ماته دا اجازت را کوئ چې زهٔ ستاسو په وړاندې لږ لوړ اُکړیږم ـ زهٔ ستاسو

ورځ کښې مالداره او خوشحاله شو؟ ستاسو څه خیال
دې کښې دی؟ نه ترقي د آسمان د لوري را پريوته!
داسې هيڅرې نه ده او نه مونږ ته داسې څه
طمع په کار ده کښي مونږ ته به ترقي د آسمان د
لورې راشي.

د هغوی د ترقۍ راز دا دې چې د هغوی په
زړونو او نيڅو کښې د قام او اولس د پاره د قربانۍ
ورکولو جذبه ده، هغوی خپلې خوشحالۍ او سود مندې
د قام د خوشحالۍ او نيکمرغۍ د پاره قربانوي.

اې پښتنو رونړو، زمونږ ه بدقسمتي دا ده چې زمونږ
سره داسې کسان نشته. مونږ يواځې خپله فائده او
سود منده لټوو. د خپل ځان د پاره قام او اولس
لوټوو، نورو هيوادونو کښې خلک په دې پوهيږي چې
هيڅوک د معاشرې او ټولنې نه اوچت نه دې دلې
زمونږ په وطن کښې هر څوک ځان د اولس او قام
نه غوره کښي او د خوږونو په نړۍ کښې اوسي. داسې

خپلو بچو حفاظت کوي. مونږ هم دغه شان کوو - په دا وجه مونږ دا حق نه دی حاصل چې ځان ته اشرف المخلوقات اُوایو ولې چې مونږ کم زیات هغه کارونه کوو چې ځناور یې هم کوي.

د دې نه آګاهو پښتنو په خپله ژبه کښې په داسې ساده او با مقصده ټکو کښې ښوک نه وُو اوریدلې ده او وې چې :-

" اې ځما د وینې او مینې رونړو دا خبره یاد ه ساتئ چې قام ښاد شي او آباد شي نو د قام هر یو وګړې خوشحاله شي، نر، ښځې، ځوانان او ماشومان خوشحاله شي. داسې خیال چرې مکوې چې کني د یو کس د آباکه سره یه ټول قام خوشحاله شي. داسې نه ده. که تاسو په رښتیا او ایمانداری سره دا غواړي چې شاسو قام د آباد شي، ښیرازه او ښاد د شي نو یواځې د ځان د پاره زوند مه تیروئ، یواځې په خپلو فائدو او سود مندو نظر مه سانئ- د قام د پاره، د اولس د پاره

خوشحاله کیدې نه شي. هم دغه یوازینی لاره ده.

باچا خان چې تقریر ختم کړو نو ټوله فضا د الله اکبر د نعرو نه ډکه شوه. د باچا خان ساده او تیز او صفا خبرو د پښتنو ټول ذهن واخیستو. داسې معلومیده لکه چې په نورې پرېکړې شوې وي خو هغوی کښې څه نااو ترېخوالې یا احتجاج نه وو ولې چې هغوی نه دا پته وه چې د نورې دا کوزارا د مینې او محبت ګزار دې او دا ټکه شوې دې چې د قام د عزت او درناوي تحفظ اوکړې شي.

یو ځلمې پښتون چې د باچا خان تقریر ښې اوریدلې وو، هغه ټوله شپه بې خوبه اوږ بیدار راوړیدو او فکر ښې کولو چې باچا خان چې څه خبرې اوکړې دا خو یو حقیقت دې. غونډې ډیرې وعدې او لوظونه کړي وو. په زرګونو کسانو قسمونه کړي وو خو دا کافي نه وو. سیلاب نزدې را رسیدلې وو.

صبا وختي، چې ملا د سحر د مانځه اذان لا نه وو کړې، دا ځلمې را پورته شو او باچا خان ته حاضر

چې غونډې ښې دا سوګند اوکړي چې هغوی به د قام د پاره خپل ژوند وقف کړي د ځلمو لیګ نه. هغه خو د منتظمانو او اولسي کارکنانو د پاره دهیوطن ته د یو داسې تنظیم ضرورت دې، چې د هغې غړي د ضرورت په وخت د قام او اولس د پاره خپل ځان قدکړي.

د باچا خان د دې ځلمي خبرې خوښې شوې. دا ته ښې د ناستي د پاره او وئیل چاې راوړې شوې.

یو داسې تنظیم چې غړي ښې لکه د سپایانو په ځې د قام د پاره ځان قربان کړي؟ د باچا خان دا فکر خوښ شو دا سوچ اوکړو چې پښتون یو جنګجو اولس دې خو ځوک چې په نوځ کښې بهرتي شوي دې هغوی خو د راج د دوام د پاره جنګ کوي. دا فکر اوکړو چې مونږ ته د داسې سپایانو ضرورت دې چې تشدد نه کوي.

د باچا خان فکر پوره شو. دا یو داسې نوځ چې په عدم تشدد عمل کوي د دې نوځ به پریډونه وي تنظیم به ښې وي، افسران به لري، وردي به اچوي بیرغ به یې

جنګ به نه کوي دوی به بې وسلې وي او عدم تشدد به د دوی وسله وي.

باچا خان ته دا علم وو چې داسې نوځ چرته ورانديې وجود کښې نه دی راغلی. د تربيت يافته پيشه ورو عدم تشدد سپايانو نوځ دا يو نوی فکر او نوی خيال وو.

دغه ځلمي د باچا خان په لور په حيرانتيا سره اوکتل او ويې وئيل چې پښتون به وي. په عدم تشدد به عمل کوي او دا به د ګڼ لاسي پښتنو نوځ وي؟

باچا خان ويې ځلمي ته او وې چې نور څوک — خو يو پښتون داسې کيدې شي چې د عدم تشدد لاره خپله کړي ولې چې داسې کار يو بهادر او مېړني اولس کولې شي. پښتون مېړني دې، حوصله لري او اخلاقي جرأت لري او په دا وجه مولږ دا يقين کولې شو چې په عدم تشدد به عمل اوکړې شي. او منبه په کاميابه سره. باچا خان دا باور هم څرګند کړو چې پښتون

په دې تجويز رد عمل نبکاره کوي او وائي به چې دا خو د بدل او انتقام شکل ورانول دي ولې چې د بدل اخستو جذبه خو د دهٔ د فطرت برخه ده او او د دهٔ په وينه کښې شامله ده خو ګاندهي خو هم د لسو کالو راسې د عدم تشدد د فلسفې خوروونه کوي او وائي چې يواځې په اخلاقي توګه مضبوط خلک په دې عمل کولې شي. ګاندهي ويلي ؤو چې دا په خاص توګه د هغه خلکو د پاره ده چې د جنګ نه يريږي نه، د دښمن د وار پرواه نه کوي او په هيڅ قيمت د تيښتې تور داغ په ځان نه لګوي. او هغه څوک چې د جنګ د پاره موزون نه وي هغوی په دې فلسفه عمل نه شي کولې. باچا خان زياته کړه چې پښتون کښې د ميړنتوب توبې خوبه شته. دوی صرف پوهول غواړي که شپږ وکسانو هم په دې عمل اُکړې شو نو دا به د ټول پښتون اولس د پاره د يوې ودې کار وکړي.

حاجتمند او موتانه نه دي په دا وجه د هغه د مخلوق خدمت کول د هغه یعنی د الله د خدمت درجه لري.

خدائي خدمتګاران د باچا خان په مشره کښې په وجود کښې راغلل- دا په نړه کښې رومبني پيښه ور او بې وسلې غوځ وو. نه د دې نه اګاهو داسې مثال چرته موجود ؤ او نه به مستقبل کښې د نړه آلسونه داسې مثال پیدا کړي- دا د باچا خان معجزه وه چې د پښتو په شان په وسله مئین قام يې نش لاسې کړو او بنه په کاميابۍ سره يې پرې عمل اُکړو. هر یو پښتون وګړي په دې غوځ کښې شامليدې شو ولې د هغه د پاره د تنظیم د لاندینو مقصدونو سره اتفاق او په دې عمل کول ضروري ؤ.

ا- زۀ يو خدائي خدمتګار يم او خدائي ته د خدمت خه ضرورت نشته خو د هغه د مخلوق خدمت کول او په کار راتلل د هغه يعنی د الله خدمت دې

زه دا اقرار کووم چې [redacted] څوک به معاف کووم چې
ځما سره نعد زیاتي یا را باندې ظلم کوي.

٣- زه جنګ جګړو کښې د برخې نه اختو لوظ کووم
او د دښمني به نه پید کووم

٤- زه به هر یو پښتون خیل دوست، ملګرې او مدد
ګڼم.

٥- زه به اولس دښمن دواجونو کښې برخه نه اخلم
او نه به خپله وده ورکوم.

٦- زه به ساده ژوند تیروم، د نیکیه کارونه
به کووم او د غلطو کارونو نه به ځنګ کوم.

٧- زه د ښو اخلاقو او ښه سلوک کولو لوظ کووم
او فضول او بې کاره کارونو کښې به وخت نه بربادوم
زه به روزانه کم نه کم دوه ګهنټې د اولس کارونه کووم

د پښتون د پاره سوګند کتل څه معمولي ـ یا ورړوکې
خبره نه ده. پښتون په ٢ سانه د سوګند په پوري

عدم تشدد د سوګند او د تنظیم روح ورو دا نه یواځې د انګریز د تشدد خلاف یوه وسله وه بلکه دې سره د پښتون په ژوند کښې چې کوم تشدد وو د هغې هم خلاف وو. دعدم تشدد په برکت سره دوی ته آزادي هم موندې نو له عزت او درناوي هم.

باچا خان د خپلو سکولونو ګریجویټ په دې تنظیم کښې بهرتي کړل. دوی د باچا خان نه دا غوندې شول ورځې ئې واچوله او په کلو او باندو کښې خوارۀ شول.

شوډو شوډو کښې به دوی سپینه وردي اچوله. خو ولې سپینه وردي به ژر خیرنیده نو په دا وجه تنظیم خپلې وردۍ نه د مزري ریو پوډې چې د تږوکرو جوړولو د پاره استعمالولې شي) رنګ ورکړو. دې سره د دې ... رنګ سور بخن شو. دا یوه کامیابه تجربه ده ولې چې اوس به وردي په یو ځ ډیرې ورځې استعمالیدې شوه. د سرې وردۍ ریونیفارم) په

او یو څو میاشتو کښې د دې تنظیم د غړو شمیر پنځوسوؤ ته ورسیدو څو دا دومره زیات تعداد نه وو چې د راج قوت دې ختم کړي. دا یوه ابتدا وه. څوک رضاکار چې دې کښې شامل شول، هغوی سوګند اوچت کړو، پلټنې به ئې جوړې کړې. د دوی به یو کمانډر وو او د فوځ بنیادي تربیت به ورکولې شو. او نور هر یو د فوځي نوعیت کار به ئې زده کولو ما سوائې د وسلې د استعمال نه. دوی به یو یونیفارم کولو، بیجونه به ئې لګول، درې رنګي بیرغ به ئې ساتلو او فوځي درجه بندي به په ډول دا تنظیم ولټ شوې ؤو.

باچا خان کنې کمیټې جوړې کړې. دې ته به جرګې ویلې شوې. دا د روایتي قبائلي جرګو په څیر جرګې وې چې د سلونو کالو راسې ئې د پښتنو غیر تحریري قانون ژوندې ساتلې وو. په یو څو کلو مشتمل به یو یونټ جوړ کړې شوې وو او دا یونټ د ضلعې په سطح

د تنظیم افسران به منتخب کوڵ نه شول ولې چې باچا خان په تنظیم کښې په دې وجه اختلافات نه خوښول. سالار اعظم یا د تنظیم سر ښکر به دوئ په خپله ټاکلو او هغه به بیا نور افسران ټاکل. دا ښځې یو رضاکار فوځ وو. دې کښې افسران هم رضاکار وو. زنانه هم دې فوځ کښې بهرتي کوڵ شوې چا چې د آزادۍ په کوشش کښې یو اهم کردار ادا کړو.

د رضاکارو دا فوځ به کلو او بانډو ته تلو، اسکولونه به یې پرانستل، د خلکو سره به یې کار روزګار کښې لاس کولو او په عامو غونډو کښې به یې امن ساتلو. دوئ د فوځي شکل پریټ کولو، مارچ به یې کولو او په تلو تلو کښې به یې داسې سندره په یو آواز د ویله.

"دا خدائي فوځ دې چې د مال دولت او مرګ نه یریږي نه مونږ په مخه روان یو. مونږ او زمونږ مشر مرګ ته تیار دې

روان دي. خو دا د ملایانو لښکر نه وو. دا د هغه پښتنو
رضاکار فوځ وو چې په سلونو کالونو یې د ټوپک او
چاړې سره مینه ساتلې ده. نن د باچاخان په
مشرۍ کښې د هغه تاریخي پښتون ټوله وسله دَ
هغه څوکه وه. نن د دهٔ سره د تنظیم، عقیدې
او اتفاق برکت وو. یو پښتون وو او یو یې مشر
وو. دا مشر د تاریخ په پاڼو خور باچا خان وو.



لسم باب

# دقیصه خوانی شهیدان

## (۱۹۳۰ ـ ۱۹۳۱ ء)

نه تاسو ته یوه داسې وسله درکول غواړم چې پولس او نوځ به ستاسو څه کولې نه شي. دا زموږ د پیغمبر وسله ده دا د صبر او استقلال او په نیغه لاره د تلو وسله ده د دنیا یو توت هم دَ دې طاقت مخه نشي نیوې.

چې تاسو کله خپلو خپلو کلو ته واپس شئ نو خپلو کلي والو ته اووایئ چې دلته یو د الله تعالیٰ فوځ دې چې وسله یې صبر ده. خپلو زوڼړو، تربورانو او کلیوالو ته اووایئ چې د الله تعالیٰ په دې فوځ کښې شامل شئ او په دې لاره کښې ټول تکلیفونه برداشت کړئ. که تاسو صبر خپل کړو نو تاسو به بریالي وئ.

(حضرت باچاخان)

پښتونځو نمائندګانو د هندوستان د مستقبل په بابله خبرې

اترې کړې وې. پښتونیشت نړۍ همدردانو د دې خبرو اترو

تماشه کوله. خبره دا وه چې آیا په سمدستي توګه

د آزادۍ غوښتنه اُکړې شي او د انقلاب په لاره روان

شو او یا د انګریز سره په دې بابله په دلیل او تفصیل سره

خبرې اترې اُکړې شي. د غور او خوض نه پس دا فېصله

اُکړې شوه چې انګریز سرکار ته خو په دې غوښتنه

د فکر او سوچ د پاره یو کال ورکړې شوې وُو. کال تېر

شوې وو. او د انګریز د با مقصده خاموشۍ هم دا مطلب

کېدې شو چې هندوستان یه د انګریز د قبضې لاندې

وي. تر نا معلومه وخته پورې.

او په دې وجه، په دغه ځائې او دغه وخت

پښتونځو نمائندګانو په شریک او یو اتفاق دا غږ

اوچت کړو چې هر یو هندوستاني نر او ښځه د هندوستان

ټول استوګن د نن نه آزاد دي.

دا اعلان هم داسې وُو لکه څنګه چې کال ۱۷۷۶ء کښې

آسونو په څیر دا د هندوستان د اولس حق دی چې دا دې آزاد دي او د خپل محنت په خوږو دې موړ شي او د دنیا د ژوند ضرورتونه دې پوره دي چې دنیا ته د ودې کولو او پرمختګ پوره پوره موقع په لاس ورشي زمونږ دا هم باور دی چې یو حکومت، یو اولس د دې حقونو نه محرومه ساتي او په هغوی زور او ظلم کوي نو دا اولس حق لري چې دا سې حالت بدل کړي او یا ئې بیخي ختم کړي. هندوستان کښې د برطانیې حکومت نه یواځې دا چې د هندوستان اولس د آزادۍ نه محرومه کړي دې بلکه د اولس په استحصال او لوټلو تکیه لري او هندوستان ئې په اقتصادي، سیاسي او ثقافتي توګه تباه کړي دې.

په دا وجه مونږ دا باور لرو چې هندوستان نه د برطانیې سره ټول تعلق پریکول په کار دي او دا دې مکمله آزادي حاصله کړي. مونږ دا د بنده او د الله تعالیٰ خلاف یو جرم ګڼو چې مونږ د څه موده پورې نور دا څلور اړخیزه تباهي او بربادي برداشت کړو؟

دې قرارداد کښې وړاندې دا ویلې شوي ؤ چې:

مونږ به ځان د دې خبرې د پاره تیار کړو چې ټول رضاکار انجمنونه د برطانوي حکومت نه خپله لمن راټغاړي مونږ به د سول نافرمانۍ تیاري کوو. دې کښې به د ټېکسونو عدم ادائیګي هم شامله وي. که مونږ د حکومت د کوشش باوجود د تشدد نه ځان اساتو نو باور لرو چې د دې غیر انساني حکمرانۍ خاتمه به وشي ـ ه"

د هندوستان درې رنګي بیرغ جګ کړې شو او په غونډه کښې د خوشحالۍ او جذبې یوه چپه خوره شوه ـ په دې موقع دوه سوه پښتنو ځلمو خپلو کښې کونجې ورکړې وې ددې په یوه دائره کښې ولاړ وو. او د ډول په آواز بې د پښتنو یو مست ډانس، یوه مستله او لیونۍ ګډا شروع کړه. نهرو د پښتنو د دې ګډا نه دومره اثر واخستو چې هغه خپله هم د مستۍ نه بېخوده شو، د پښتنو پټکۍ یې په سر کړو او په ګډا شو. هندوستان نن آزاد شوې وو، بس ضرورت د دې خبرې و چې په انګریزانو دا حقیقت ثابت کړې شي.

دا اوس د ګاندهي کار وو چې هغه ورځ او هغه مسئله

هندوستانیانو ته غږ ورکړو چې ځان د دې کار د باره تیار کړي او دې لړ کښې دې د خپل روحاني غږ په انتظار وو.

هندوستان په انتظار ؤ او سوزیدلو داسې لکه څنګه چې د ځمونږ سوت وریږي په اُفق خونکیږي د درې سوو ملینو خلکو هیواد د هغه وخت په انتظار وو چې کله به دا طوفان را ماتیږي. د جنورۍ میاشت راغله او تیره شوه ورپسې فروري راغله او لاړه. د ګاندهي د اړخه څه خبره نه وه انګریزانو دفترونو او کلبونو کښې د دې طوفان په حقله خبرې کولې او په انتظار وو. انګریزان د ګاندهي د اشارې په انتظار وو. د دې نه ګاهو هغوی څه کول نه غوښتل. لول

د کال ۱۹۳۰ء په دوئیم مارچ ګاندهي وائسرائې ته یوه داسې چیټهۍ اُلیږله چې داسې د حکومت یو مشر ته ورلیږلې نه وه لیږلې شوې. ده په دې لیک کښې ښه په تفصیل سره د هغه حالاتو او وجوهاتو جاج اخستې وو د کومو له کبله چې ده د انګریز حکمراني یو لعنت ګڼلو ده لاندې اراده ته دا خبرداري ورکړې ؤ. چې که تا د دوه برابرو د پاره

په دولسم مارچ ګاندهي ذ سابرمتي سیند په غاړه د خپل آشرم نه راجر شو او د سمندر په غاړه یې ذ ځانډي نومي کلي په لور خپل تقلیرئینت وړځنی سفر شورو کړو. په شپږم اپریل ډه د زرګونو هندوستانیانو په وړاندې د ځانډې د غاړې نه مالګه را اوچته کړه او هغه قانون یې مات کړو دکوم تر مخه چې د مالګې جوړول او خرڅول د حکومت اجازه کرځولي شوي وه. دګاندهي د دې اقدام سره د مالګې ستیاګره شورو شوي وه.

ټول ملک کښې د مالګې د قانون خلاف ورنې شورو شوه دا قانون د انګریزانو له اړخه د استحصال یوه وسیله وه. ذ هندوستان په شان ملک کښې مالګه هم دومره یو لازمي شې دې څومره چې اوبه ضروري او لازمي دي.

د دې قانون تر مخه د مالګې منډیه (راخستون او خرڅون) سرکاري اجاره کښې اختتل شوي وه په دې یو محصول هم لګولې شوې وو او دا ذ آمدنې په دویم نمبر یوه ذریعه وه. که امیر هندوستاني وو او که نادارو. مالګه

چې په اولس غیر ضروري بوج اچوي یا د اولس د جذباتو او احساساتو خلاف وي یا د واکدارانو په مرسته کښې اود انساني اقدارو خلاف وي هغه قانون څه جواز نه لري په کار دي چې داسې قانون مات کړې شي او خلاف ورزي پې اوشي.

که اولس را پورته شي او د یو داسې قانون خلاف ورزي شورو کړي، هغوي د داسې کولو حق لري. د یو قانون بنیادي مقصد دا دي چې په مجموعي ډول یوه ټولنه وده اوکړي هغه د ټولنې افرادو ته تحفظ او سلامتیا ورکړي. دهندوستان د مالګې قانون یوائې په دې غرض جوړ کړې شوې وو چې د اولس د جیب نه زیاتي پیسې ټکې وصول کړې شي او د انګریزانو خزانه په دې ډکه کړې شي. د مالګې قانون د انګریز واکدار د زور او جبر یوه مکمله نښه وه او یو ساده بوډه زمیدار هم په دې حقیقت رسیدلې وو.

ټول ملک کښې د مزاحمت او د حکومت د حکم خلاف ورزي شورو شوه په ملینو هندوستانیانو په مالګه اختته

خور شوي وُو انګریز واکدار داسي څه شي ورانديي نه وُو ليدلي. د انګریز واکدار په ټول تاریخ کښي ديو حکومت هم داسي تجربه نه وه شوي. نوځوانانو او پولس په ټش لاسي اُولس په چوکو ځپول، د کانګرس په دفترو ډېيي چاپې اُوهلي جائيدادونه يې ضبط کړل او د ګاندهي نه علاوه يې د ټولو سياسي ګوندونو د سر سر مشران اُنيول. د حکومت دا خيال وو کښي دې سره به دغه تحريک پخپله سر اُخوري په جلسو او غونډو بنديز اولګولي شول او اخبارونه بند کړي شول. سل زره کسان جيلونو کښي واچولي شول.

خو د دې کاروايو سره طوفان نور سيوا شو. د هري نوي ګرفتارۍ او وهلو ټکولو په نتيجه کښي مزاحمت نور سخت شو او آخر چي د لندن اعتراضونه د برداشت نه اُوتل، ګاندهي په خلوډم مئي اُنيولې شو. ګاندهي په دې موقع خپل وطنوالو ته دا پيغام ورکړو چي مزاحمت جاري ساتي ولې دا خيال د ساتلي شي چي مزاحمت سره تشدد ملګري نشي.

یادکړ وه دا واړه دوی د ګهاندهي صبر په آزمینت کښې اچول نه غونښتل هندوستانیانو په دې تحریک کښې ځان د تشدد نه لرې ساتلو.

د پښتونخوا په سیمه د تحریک په جواب کښې د انګریز واکداراوزور ظلم پوله اښکولې. د اپریل د رومبنې هفتې نه پس صوبې ته د اخباري رپورټرانو په تګ پابندي اولګولې شوه او د صوبې اخبارونه به په درنه پیمانه سنسر کولې شول. په نتیجه کښې اولس د ډیرو وهلو ټکولو او شرمولو په بابله ډیرې افواکانې ګرځیدې راګرځیدې ولې انګریز واکدار د پښتنو په دغه بهادره سیمه داسې تورتم جوړ کړې وو چې د خبرونو او افواکانو تصدیق چا کولې نشو.

بیا ګانګریس د حالاتو د جاج اخستو د پاره یوه کمیټۍ اوټاکله د دې کمیټۍ مشر ویټهال بهائي پټیل مقرر کړې شو چا چې اوس اوس د قانون سازې اسمبلۍ د سپیکر د عهدې نه استعفی ورکړې وه. دې کمیټۍ ته دا کار اوسپارلې شو چې د پښتونخوا د حالاتو صحی جاج واخلي. حکومت د

هغه ملګري د پښتونخوا سره نږدې د پنجاب صوبې پنډۍ ښار کښې ديره شول او د هلته نه يې د حالاتو پلټنه شورو کړه. دې کمېټۍ يو کم اتيا ګواهانو سره مرکه اوکړه او د دوۍ د شهادتونو په رڼا کښې يې يو پراخه رپورټ تيار کړو. حکومت په دې رپورټ د څې سره پابندي اولګوله دې رپورټ کښې ويل شوي وو چې د پښتونخوا په اولس څومره زور، ظلم او زياتي شوي ده داسې زور زياتي د دې نه وړاندې د هندوستان استوګنو ته ده ليدلې.

خو په پښتون د زور او ظلم د قيصو سره سره د هندوستان استوګن د دې رپورټ په وسيله د هغې مړانې او بهادرۍ د قيصو نه هم خبر شول کومه مړانه چې د پښتنو په برخه رسيدلې ده. هندوستانيان خبر شول چې نش لاسي پښتون د عدم تشدد په قوت د وسله بند انګريز څنګه مقابله کړې ده.

صحي او رېښتوني خبره خو دا ده چې د پښتنو مړانې او

لنډ دې هغه دا چې " غلامي نه منم "

ډيرې خبرې سره پې يو چې د پېښور د اړې کړې تيمه د خان نه شورو کيږي.

د کال ۱۹۳۰ء د جنورۍ په ړومبني تاريخ چې لاهور کښې د آزادۍ کوم اعلان شوې وو. دا ټول هندوستان کښې اولسي غونډو کښې آوروې شوې وو. دغه اعلان پښتونخوا کښې هم په جلسو او غونډو کښې آوروې شوې وو. د دې اعلان سره سمدستي لوې خان د دهٔ سرخپوش خدائي خدمتګارانو ډيې په تندۍ سره د تعليم او تنظيم کار شورو کړې وو. صوبې کښې بې د کلو دورې شورو کړې وې انګريز واکدار د خدائي خدمتګارانو د تعليم او تنظيم کار ته کتې نهٔ شول هغوي په پښتو باور هم نه کولو ولې دَ هغوئ د غصې نه بې هم خان ټج ساتل غوښتل او په دا وجه د باڼي په لټون کښې وو. دَ سوچ او فکر نه وروستو د پېښور چيف کمشنر خان ته د دهٔ سره د ليدو پيغام ور اُليږلو دهٔ خان ته حکم ورکړو چې ستا خدائي خدمتګارانو کوم کار

تحریک نه دې. دۀ اووې چې دا خو د حکومت کار دې چې داسې تحریکونه شورو کړي او اولس ته تعلیم ورکړي زۀ خو د حکومت کارکوُم. په کار خو دا وه چې حکومت دې کار کښې ځما مرسته اُکړي. ځما ملګرتیا اوکړي او ځما کار آسان کړي.

کمشنر د خان په خبره غوږ او نه ګړولو او ته خان دَ انګریز پېړ ستوګي په خبره ځان پوهـ کړو خان خپلو خدائي خدمتګارانو ته اووې چې د پښتنو خوا کلي په کلي اوکوڅه په کوڅه خوارۀ شی. پښتنو ته اووایی چې په خپلو ماشومانو نوان دي او که جینکی تعلیم حاصل کړي چې د قام وګړي دَ یو بل په کار راشي. پښتنو نه غږ ورکړې شو چې خپلو کښې دښمنی ختمې کړي. او دیو بل ګریوان ته لاس مه اچوې دې کښې څه مړانه نشته، خپل ورور ترېور ته عزت او درناوي ورکوې چې ستاسو نورو خپل عزت سیوا شي. یو بل ته په درنه سترګه ګوري د یو بل په کار راځي.

دې دوران کښې یو څو هفتې روستو ګاندهي د ډانډۍ

بوټ نه. ووَنکي سيمه ځان کمزورې ګڼلو دوی په دې پوه
وو چې د پښتون قابو کول يو ګران کار دې. دوی يرې اخستې
وو چې د څوا په څې دا ټوله صوبه اور وانخلي ولې چې دَ
دوی په خيال د دې سيمې اور هم زيات تود وي.

د کال ۱۹۳۰ء دروشتم اپريل خان اُتمانزو کښې يوې لوئې
غونډې ته خپل تقرير کښې په سول مزاحمت کښې د شامليدو
هدايت اُکړو. دې په خپله يوه بلې جلسې ته د تقرير
کولو په غرض د پيښور په لور روان شو. د ناکې سره
دې ګرفتار کړې شو د دغې کلي اُولس د لوئې باچا خان
سره د عقيدت او دَ ده د ګرفتارۍ خلاف د احتجاج
په توګه اعلان اُکړو چې د نن نه پس به زمونږ د کلي
ټول خلک خدائي خدمتګاران وي.

د باچا خان د ګرفتارۍ خبر داسې په تندۍ سره
خور شو لکه چې ځنګل کښې د وچو ونو اور خورېږي
د سترګو په رپ کښې په زرګونو مظاهره کوونکي دَ جيل
نه تاو شول. دا نبه آشول چې د باچا خان مشر ورور
ډاکټر خان صيب په موقع را اور سيدو او ياريدلي اولس

کاله سزا اوروِل شوې وه او دوی ډ خپلې پښتونخوا نه د څه پیښې نه بغیر بل چرته روان کړې شول.

بل خوا پښتونخوا د عدم تشدد د لاسه په چاودلو راغلې وه پیښور کښې هم په دغه ورځ سحر وختي د خدائي خدمتګار تنظیم نور مشران نیولي شوي وُو. او غرمه پورې نیول شوې وو. د ګرفتارۍ خلاف چرې خلک قیصه خوانه بازار کښې را ټول شوي وو د نژدې چاوڼۍ نه فوځیان دریو بکتر بند ګاډو کښې را اورسیدل.

دغه وخت پورې نیولي ګرفتارۍ په امن ناکه توګه شوې وې او د پولس یو سب انسپکټر دغه بازار کښې راټول شوُو خلکو ته اووې چې کورونو ته لاړ شي او څه تشدد او نکړي. خلک د سب انسپکټر په وینا روان شول او دا سې څه ارادہ ښې نه وه کني دوی به تشدد کوي. د کانګرس تحقیقاتي کمیټۍ هم په دغه نتیجه را رسیدلي وه چې د قیصه خوانۍ بازار دغه خلک چې د ګرفتارو خلاف د احتجاج

په غونډه ور اُختل په دې وجه ډېر کسان ژخمي شول څه ټوپل شول او یو څو کسان هم په دغه ځائې مړه شول. دا خلک بېخي نش لاسي وو. د دوی په لاسو کښې څه کانړي یا چوکې هم نه وې. د پښتنو دا غونډه چې د باچا خان د عدم تشدد په فلسفه کلکه ولاړه وه ډېره په قرار پاتې شوه، ډېر په صبر او استقلال او وقار سره یې خپل ټوپل او شهیدان شوي کسان رانول کړل.

د کانګرېس رپورټ کښې لیکل شوي دي. چې په دې بېبنه نور کسان را ټول شول فوځیانو ته د ګولو چلولو حکم ور کړې شو انګرېز واکدار په دوی ډزې شورو کړې ګڼ کسان شهیدان او ټوپل کړې شول او د دې ډنډ په نتیجه کښې خلک لږ په شا شول.

پاؤ د پاسه یولس بجې څنه دریمګړو را غونډ شوي کسانو ته اووې چې خوارۀ وارۀ شي او د حکومت واکدار ته یې هم خواست اوکړو چې خپل فوځیان او ټکټ بند کا دي وړو ستو کړي دي کسانو او وي چې موږ څه

نه انکار اوکړو . د دې نتیجه دا شوه چې د غونډه شوي کسانو هم د خوړیدو نه انکار اوکړو دوی او وې چې مونږ ګولو زغملو او د خپل سر قربانۍ ورکولو ته تیار یو او د دې نه پس د حکومت په نشه کښې مست واکدارو د ګولۍ چلولو حکم ورکړو او دا ډزې دریو ګینټو پورې جارې وې.

د هاروډ چنې شارپ د عدم تشدد تحریکونو په لړ کښې د پیښور د قیصه خوانۍ بازار د ډزو په بابله لیکي چې:-

" چې کله د رومبي قطار خلک ژوبل شول او را پرېوتل نو دوی پسې چې کوم ولاړ وو هغوی را وړاندې شول. د دوی ټټرونه بربنډ وو او ګولو ته مخامخ شول. دې مړو او ژوبل کسانو کښې داسې هم ؤو چې یو ویشت ګولۍ لګیدلي وو. او د غلته ټول موجود کسان ډیر په استقلال او وفادارۍ سره د ګولو په انتظار کښې ولاړ ؤو"

چلوه. فوځي ګولۍ اُچلوله او دې ښې په ځائې اُوژلو د پښتنو
ننګیالو دغه غونډه په ځائې ولاړه وه. فوځیان ورته مخامخ
ولاړ وو او په دوی ګولۍ ورېدلې او ورو ورو د مړو
او ژوبل کسانو یوه دلۀ جوړه شوه؟

د لاهور نه شائع کیدونکي اینګلو انډین اخبار چې د
سرکاري فکر ترجماني کوي په خپله دا خبره منلې وه.
چې خلک په خپله خوښه یو په یو د دوی نه را مخامخ
شول او چې څوک به ژوبل شول هغه به اوچت کړې
شول او نور کسان به را وړاندې شول. داسې ډز چوز
د سهر پولسو بجو نه مابنام پنځو بجو پورې جاري وو.
چې د شهیدانو شمیر ډېر سیوا شو سرکاري ایمبولینس ګاډي
کښې واچولې شول او ښخ کړې شول.

فوځیانو په دغه ډول تهوله ورځ د پښتنو وینه توئې
کړه د هندوستان یو ج لیکلي وو "چې پښتون د مرګ
نه تیښته نه کوي. ده لیکلي وو چې که څوک دا رائې قائمه
کړي چې پښتون د خطري نه ځان اُباسي نو په دې

دښمنه دَ ډزو نه اُښتي. د کانګرېس په رپورټ کښې وېلي شوي وُو. چې په دې موقع د ډزو نه دديو سوو پورې کسان شهيدان کړې شوي وُو. او هم دومره کسان ټوپل کړې شوي وو. دَ دې پېښې نه د انګرېز دَ ځناورتوب او دَ پښتون سره دَ دښمنۍ ښه اندازه کېدې شي.

په دې ورځ په يو وخت حکومت ګړهوال رائفلز ته په غونډه دَ ډزو کولو حکم ورکړو. ګړهوال رائفلز د حکم منلو ته انکار اوکړو. ددې اُووې چې مونږ په نشتې لاسي اُولس ډزې نشو کولې. تاسو که غواړئ مونږ دَ سزا په توګه د توپ خانې فائر ته وړاندې کولې شئ. دا خبره د ياده وي چې کله د ۱۸۵۷ء بغاوت ناکامه شو نو دې کښې شريک فوځيان د سزا په توګه د توپو ګولو ته وړاندې کړې شوي وو. او ريزې ريزې شوي وو.

چې د ګړهوال رائفلز د مړانې خبر په هندوستان

شوه. یوکس د نیول عمر د پاره جلا وطن کړې شو، یو کس پنځلس کاله قید کړې شو او باقي نورو کسانو ته سختې سزاګانې واورولې شوې.

دا په ټولې نړۍ کښې یوه مشهوره رجمنټ وه چې د خپلې مړانې او وفادارۍ د پاره مشهوره وه او دحکم منلو نه د دې انکار انګریز واکدار ته د لوئې بغاوت ورځې وریادې کړې او دغه وجه ده چې انګریز واکدار د دې د ځنیوي پخه او کلکه اراده کړې وه آخر دغه شوه او د مالګې قانون ماتولو تحریک کښې چې کوم په زرګونو کسان نیول شوي ؤ. هغوی له خلاص کړې شول ولې ګړهوال رائفلز کسانو خپلې پوره سزاګانې تیرې کړې.

پېښور کښې خپله هغه وخت اړې ګړې جوړې شو کله چې پولس او فوځ د مظاهرو د ځنیوې هسه اوکړه د کانګریس رپورټ کښې وئیلې شوي وو چې د راتلونکو دوه ورځو د پاره پېښور د انګریز واکدار د زور ظلم.

ته پرېښو يو څو ورځې پس نوح او پولس بيا د ښار بندوبست خپل لاس کښې واخستو او دا وار دوی ړومبې دا کار اُوکړو چې د خدائي خدمتګارو تنظيم ئې غير قانوني اوګرځولو، د دې تنظيم ټول دفترونه ئې بند کړل کاغذونه او ريکارډ ئې تباه کړو او دَ تنظيم پيسې ټکې او پنګه ئې قبضه کړه. دکانګريس رپورټ کښې وئيل شوي دي چې په دوئيم وار د ښار قبضه اَخستو نه پس:

ښار په عملي توګه د مارشل لا لاندې دې. پښتو کښې د هيڅا آزادي او سر و مال محفوظ نه دې. د پښتنو دا صوبه د ټول دنيا د پاره ممنوعه سيمه ده. دا صوبه دَ ټول هندوستان نه پرېکړې شوي ده او هيڅ يو سياسي مشر ته دغلته د تلو إجازت نشته. د دې ټول زور او جبر باوجود دَ پښتون اُولس جذبه ماته شوي نه ده او ښه په کلکه په عدم تشدد عمل کوي.

په دغه ورځ د خان په کلي کښې هم د زور ظلم ابتداء اُکړې شوه. ډاکټر خان صيب چې پېښور کښې

چې د خلکو مدد اُکړي. دې ر ډاکټر خان چې بیا د خپلې صوبې وزیر اعلیٰ اُټاکلې شو) وائي چې په دغه موقع ما په اوّل ځل سیاسي تقریر اُکړو. ډاکټر خان صیب اُولس ته خواست اُکړو چې په عدم تشدد ولاړ اُسي. چې څنګه ده خپل تقریر ختم کړو کائیډز ګیولړي د غلته را اُرسیده.

د کائیډز کمانډر اعلان اُکړو چې زر خوارۀ شئ کني ځاکسان به ډزې شورو کړي چې چا د ده په خبره غوږ اُ نه ګړولو، ده ډاکټر خان صیب ته د مدد کولو د پاره خواست اُکړو. ډاکټر خان صیب کمانډر ته اووې چې ستا د پاره غوره خبره دا ده چې په کومه لاره راغلې یې په هغه لاره واپس لاړ شه او مونږ پریږده چې د خپل هدف په لور روان شو ولې که نه ګولۍ چلول غواړې نو دا کار اوس اُکړه ولې چې که مونږ د دې ځایه روان شول، د هغې نه پس

حمله اُکړه - د اکنړ خان صیب په دا موقع ډیره په

تاؤ او نړیوالي دا خبره کړې وه چې انګرېز واکدار

بې عقله شوي دي دوی زور ظلم جاري اوساتو - خو

خدائي خدمتګارانو د انګرېز د زور او جبر ځواب

په تشدد ور نکړو - د دې نتیجه کښې د ستمبر آخره

پورې د خدائي خدمتګارانو شمېر اتیاؤ زره ته اُرسیدو -

هغه خبره چې انګرېز نړې یریدلې وُو - او هندوستان

ورته ګوته په خوله پاتې شوې وُو هغه د پښتون عدم

تشدد وُو - هیچا دا طمع نه وه کړې چې د پښتون پۀ ځیر

جنګیالې قام په عدم تشدد ولاړ پاتې کیدې شي . انګرېز

د پښتون د عدم تشدد په وجه د اعصابو رنځور شوي

وُو - انګرېز پوهیدو چې سوړ او یخ پښتون د متشدد

پښتون نه زیات خطرناک ثابت کیدې شي - د خان وینا

ده چې انګرېز په پښتون د کوم زور او ظلم کولو د

هغې یو مقصد دا وُو چې پښتون په اشتعال کښې

پښتون د زور ظلم کولو جوګه پیدا شي. انګریز په دا حقیقت هم رسیدلی وو. چې پښتون په کومو کومو خبرو اشتعال کښې راتلی شي. دې مکار واکدار خدائي خدمتګاران خپل لوظ او قول ماتولو ته تیار کړل.

د کال ۱۹۳۰ء په دیارلسم مئ سرکاری فوځونه د سحر راچاودو نه اګاهو اتمانزو ته واپس شوي ؤ. لا تیاره نه وه چه دلې چې اته سوه انګریزي فوځ، د انډین کیولري یوه رجمنټ سره د څلورو توپو او بې شمیره ګنونو د اتمانزو د کلي نه تاؤ شول په دغه وخت د دې کلي ټوله آبادي د پنځو ندو نه زیاته نه وه. سحر وختي فوځیان په کلي ور دننه شول او هغه ځائ ېې قابو کړو چرته چې د خدائي خدمتګارانو هیډکوارټر وو. چې دوئ دروازه ماته نه کړې شوه نو په دیوالونو ور اوختل. دغلته د خدائي خدمتګارانو کمانډر رب نواز خان په دغه عمارت کښې ټولو رضاکارو ته او وې چې د عدم تشدد لوظ یاد ساته. د دې مقصد دا دو چې فوځیانو نه د تشدد جواب په تشدد سره مه ورکوئ.

انګریز ډپټي کمشنر چا چې په فیصله خوانۍ کښې

او خپل سور یونیفارم اُباسه. دوی د دې خبرې نه انکار اُوکړو. ډپټي کمشنر خپله تماچه را اوویسته او د یو پښتون په سینه یې کېښوه. دهٔ ورته اُووې چې خپله سره وردي اُباسه کنې گولۍ چلوُوم"

خدائي خدمتگار ورته ډېر په تسلۍ سره اووې چې " صیبه داسې خو نشي کیدې. چې څو پورې یو پښتون ژوندی وي د هغه جامې څوک ایستې نشي؟

دې د ټوپک په بټ اُوهلې شو چې بې هوشه راپرېوتو نو بیا یې د دهٔ جامې اُشلولې.

دهٔ پسې فیض محمد نومې سړې هم د وردۍ ایستلو نه انکار اُکړو. فوځیان د دهٔ په وهلو لگیا شول. دا یو لوړ دنګ او تنومند سړې وُو، دهٔ خو تحه جګړه نه کوله ولې بیا هم د دهٔ وهلو او لغتولو د پاره د اَتو نهو کسانو ضرورت وو. لنډه دا چې دا کس هم بې دردۍ سره اُوهلې او اُټکولې شو. دومره چې بې هوشه راپرېوتو.

په دې ډول یو په یو ټول رضاکار اُوهلې شول.

فوځیان محمد نجیب خان ته را او رسیدل. دی د خدائي خدمتګارو کپتان وو دې هم ډیر بیدردئ سره وهلې شو او آخر د ده نه قمیص ایستلو کښې کامیاب شول. خو چې کله ده ته بیا حکم ورکړې شو چې پړتوګ هم اوباسه، د ده په مخ کښې وینه اوڅه شو. دوی ته باچا خان ویلی وو چې د مرګ نه به یرېږې نه او دا کپتان مرګ ته تیار وو ولې د ننګیالي واکدار په حکم او د مغوره په وړاندې د یرې نه پړتوګ ایستل د مرګ نه هم سیوا خبره ده. د دغې خبرې نه مرګ غوره او عزتناک وو. ده په دې اراده منډه کړه چې ټوپک نه لاس کړي او د پښتون په څیر مړ شي.

په دې موقع د ده کماندر محمد نقیب ده ته او دې ببه دومره زر ستا صبر تمام شو؟ تا خو دا لوظ کړې وو چې زه به مرګ پورې په عدم تشدد کلک ولاړ یم.

دا د باچا خان کرشمه وه او کنه د پښتون د قوت مظاهره چې داسې سختو حالاتو کښې هم دوی په خپل لوظ پوره آخل

د یو مشر وینا ده چې " د هندوستان د آزادئ په تحریک کښې دَ هر څه نه لویه معجزه د پښتون په عدم تشدد ولاړ پاتې کیدل دي" دَ کمال خبره دا ده چې هغه پښتو چې دَ وسلې سره لکه د ناوې مینه لري۔ هغه ټوپک تماچه گوزار کړه او د بې رحم انگریز واکدار مقابله بې په تش لاس اُکړه۔ دا دومره عظیم قوّت پښتون کښې د کومې راغې ؟ دَ دې مقصد دا دې چې پښتون یو زرخیزه او د قوت ښښتن قام دې او که دَ دهٔ دَدوې د پاره څک جوړ حالات ده ته په لاس ورشي نو دې د نړۍ یو ډیر نورزن، پاتوړ او ترقي یافته قام جوړیدې شي۔ ولې د پښتون ډیرې خوبې یو طرف ته او یوه کمي چې په بل لور دا یوه کمي د دهٔ خوبې داسې خوري لکه څنگه چې د سمندر غټ کبان ودکوټي کبان خوري۔ د پښتون دا کمي دَ دهٔ بې اتفاقي ده۔ خوشحال خټک هم په یوه موقع په افسوس سره ویلي وُو چې د مغل نه ځما هره یوه چاره ښه ده

بهر راوتې شول او نه د اودس ماتې په غرض دَ کورونو نه راوتلې شول. انګریز واکدار دومره ځناور شوې ؤ چې د کلي نه بهر خاروي بې هم اوېشتل او چې چا به سُور قميص اچولې ؤ هغه به وهلې شو او ښځ به جيل ته لیږلې شو.

آخر د اُتمانزو کلې صفا کړې شو. د ګرفتارولو د پاره خوک رهـ کار نه وو پاتې. نور خوک سرخپوش شته؟ انګريز کمشنر په فخر او وياړ لکه د ګوليانګ سپي اُتميدو.

د يو عباس خان د پاره د انګريزي داچيلنج دَ زغم او برداشت نه بهر وه. دې په خپله سرخپوش خو نه ؤو خو دهٔ د پاره د انګريزي واکدار داسې د فخر ځناورتوب برداشت کول دَ پښتنوله دَ دايرې نه بهر وه.

عباس خان په ګنډه سره کورته لاړ. زر زرېې خپل قميص ته سور رنګ ورکړو. او لوند قميص بې واچولو، کلي ته په منډه منډه راغلو او د انګريز کمشنر په وړاندې لکه د [illegible]

برداشت کولی نسي ولې د خپل قام سپکاوی نه برداشت کوي. دا د انګریز د زور او جبر جواب وو چې باچا خان په خپله یو زر رضاکار بهرتي کړي وو ولې د انګریز د زور او ظلم په ردِ عمل کښې اتیا زره کسان د خدائي خدمتګار په تنظیم کښې شامل شول. دا رائې سړې په آسانه سره قائمولې نسي چې دا که بل څوک وُو نو د انګریز د زور ظلم په جواب کښې به د دغې تنظیم نه څنګ نه شوي وُو ولې پښتون په نور زیات شمیر کښې دغه تنظیم کښې شامل شو پښتون او د هندوستان په نورو قامونو کښې دغه فرق دې.

چې حکومت د پښتنو په ټکولو کښې ناکامه شو نو نوې طریقې یې په کار راوستې اګست کښې مارشل لا اُلګولې شوه او صوبه په مکمل ډول فوځ ته اُسپارلې شوه — خدائي خدمتګاران به نیولې شول او عجیبه عجیبه سزاګانې به ورکولې شوې، یو مهم جو استیټ سیر ننتهند نن بناغلي

ولې د عدم تشدد لوظ يې مات نه کړو.

انګرېز دا کوشش هم اُوکړو چې د خدائي خدمتګار په تحريک دَ بالشويک داغ اُولګوي. انګرېز کمشنر د کلو مشرانو نه يوه چټهي اُوليکله. دې کښې وئيل شوي وُو چې:

تاسو خپلو کلو کښې د کانګرس په رضا کارو دا پابندۍ اُولګوي چې دوئ سرې جامې نه اچوي. دا کسان ځان ته خدائي خدمتګاران وائي ولې په اصل کښې دوئ د ګاندهي خدمتګار دي. دا د بالشويکو وردي اچوي دا به ستاسو د پاره هغه حالات پيدا کړي کوم چې بالشويکو د خپلو وطن والو د پاره پيدا کړي وو.

يو پښتون ليکوال ښاغلي محمد يونس ليکي چې:

د دې پېښو نه پس دوه کاله صوبې کښې تکه توره تياره وه قدم په قدم ګولۍ چلولې شوې وهل به کولې شول او د اشتعال تور کاروونه به کولې شول. د پښتونخوا اُولس د دې نه اګاهو چې داسې تکليف نه وو برداشت

د کوهاټ په سخته یخنۍ کښې به زمونږ کسان اوهلي شول او بیا به د بنار په مینځ کښې د اوبو یخې ولې ته ور واچولې شول. بنوں او ډیره اسمٰعیل خان کښې هم دا قیصه څه مختلفه نه ده. دلته د کلو نه نوځیان تاؤ شوي وو مقصد ئې دا وُو چې د لوږې او تندې د لاسه کلیوال تنګ کړې شي او په اطاعت او تابعدارۍ مجبور کړې شي د صوابۍ د اسنوګنو پټي او فصلونه تباه کړې شول، د دوۍ د غنمو په ذخیرو تیل واچولې شول او تیلې ورته کړې شو.

خو پښتون اولس د دې حقیقت باوجود چې د تشدد او خونریزۍ په ماحول کښې لوئې شوې وُو او پائیدلې وُو خو د آزادۍ حاصلولو په خاطر ئې د زور او جبر او ظلم دا سوې لوې ردیه په سره سینه اوزغمله.

د انګریز واکمن د پاره کار بیخي بند شو. دا تحریک ډیر په قوت سره خور شو. ټول برصغیر کښې هړتالونه

د کال په آخر کښې لارډ اېروِن په يوې لوظنامې د خبرو اترو د پاره ګاندهي ته دلی ته د راتلو بلنه ورکړه. په دې بنا برطانيې په سرکاري توګه ګاندهي او د هغه تحريک اُومنلو.

د يو څو ورځو د خبرو اترو نه پس ګاندهي او اروِن د برابرتيا په بنياد په يوې لوظنامې لاس ليکونه اُوکړل د سول نافرمانۍ تحريک ختم کړې شو د ټول هندوستان کښې ګرفتار کړې شوي سياسي قيديان را خلاص کړې شول. د پښتونخوا په سيمه د خان د تحريک په نتيجه کښې حکومت هغه رعايتونو ورکولو ته مجبور شو د کومو چې له ډيرې مودې راسې غوښتنه کيده. هغه څوک چې د دې غوښتنو سره يې څه همدردي نه وه هغوی هم دا خبره منې چې د کانګريس او سرخپوشو د دباؤ په وجه پښتونخوا د ګورنرۍ صوبه اُوګرځولې شوه. دلته اوس يو کورنې وزير

ولې د ګاندهي او اِروِن تړ منځه چې کومه لوظنامه آشوه دي هيڅوک مطمئن نه کړل. لندن کښې د سياسندانانو خيال وو. چې د دې لوظنامې تر څخه ډير رعايتونه ورکړې شوي دي. د هندوستانيانو په خيال کښې چې هغوئ د آزادۍ په طمع ناست وو، ګاندهي څه دَ ذکر ور کاميابي نه وه تر لاسه کړي. اګر چې دا لوظنامه په شروع شروع کښې بې نتيجې ښکاريده ولې حقيقت دا وُو چې د ګاندهي او اِروِن لوظنامه دَ امپريلزم د خاتمې ابتدا وه. چرچل په دې خبرة رسيدلې وُو. هغه پوهيدو چې تاريخ د هر چا نه زيات پوه دې. دا لوظنامه دَ هغه په خيال کښې د انګريزي واک د مرګ تهلۍ وه.

## یولسم باب

# مهذبه څوک دي
# انګریز که پښتون ؟

(۱۹۲۱ — ۱۹۳۴ء)

ځاسره د ناپ تول او پیمائش یو معیار دي او دا پیمانه الله تعالیٰ ته ځان سپارل دي. (حضرت باچاخان)

پښتون د ژوند په هره یوه معامله کښې په الله تعالیٰ ساده او کلکه عقیده لري. د یو پوخ مسلمان په حیث دې پنځه وخته مونځ کوي. دې د کلي د ملا نه راهنمائي حاصلوي او دا وجه ده چې د پښتنو قبیلوي ژوند کښې ملا د طاقت او قوت سرچینه وي. دا خبره صحي ده چې د پښتنو جنګيالي او ننګيالي جنګونه کوي ولې ملايان دې جنګونو ته قوت ورکښي. ملا مشنون، د چرچل پیونی فقیر د دې یو مثال دی.

دي او يوه هم داسې قبيله نشته چې ته چې د پير فقير
او د پرهيزګاره بنيادم زيارت نه وي. هم په دې مقدس
ځايونو پښتون د تمام د عزت او سرلوړۍ د پاره د خپل
سر ورکولو لوظ او قسم کوي.

دا خو د خان د خوښې خبره نه وه ولې اُشول داسې چې
اولس دۀ ته د يو بزرګ او د برخې د څښتن په نظر کتل
شورو کړل. دې چې د ګاندهي او اروين تړ مينځه دَ
لوظنامې نه پس کال ۱۹۳۱ء کښې پښتونخوا ته واپس شو
نو کليوال د دۀ نه تاؤ را تاؤ شول، د هغوی دا عقيده
وه چې دې په سرې لاس اوودهي نو روغ جوړ شي. دې
سره د دې خان ژوند دومره ساده وُو چې دې د پښتون
ګاندهي په نامه مشهور شوې وه.

دَ خان د پاره د دۀ دا نوم نه وو خوښ دۀ دَ
طالب علمانو يوې غونډې ته اوويل چې ځما دَ نوم سره
د ګاندهي د نوم اضافه مه کوئ. تاسو چې ځما کوم
تعريف او ستائنه کوي زۀ ځان د دې جوګه نه ګڼم ـــ

چې تاسو ځاکومه ستاینه کوئ په دې زهٔ نه خوشحالیږم زهٔ ستاسو په محنت خوشحالیږم. دهٔ به پښتنو ته د محنت او خوارئ کولو وینا کوله او وئیل به یې چې د دنیا کښې یواځې هغه قامونه عزت او درناوې مومي چې محنت کوي او د قام سره مینه لري او د قام د عظمت د پاره قرباني ورکوي هغه قامونه سر اُخوري او پناه شي څوک چې د نفاق په رنځ اخته دي.

دهٔ به وئیل چې د خدائ د پاره ماته "باچا" مه وائې. زهٔ خو ستاسو خادم یم، ستاسو خدمتګار یم زهٔ خو غواړم چې ستاسو چم ګاونډ جارو کړم او ستاسو بلاګانې په خپل سر واخلم. خو بیا هم د خپل اُولس د پاره دې باچا وو.

د خان خوراک ساده وو. دهٔ به غوښه نه خوړه چائې به یې نه څښکلې. د خامتا کپړه به یې اچوله. دې دومره ساده وو چې د سړي به په دومره ساګئ یقین نه راتلو.

انګریزانو او ملایانو د دهٔ مخالفت شورو کړې وو، لویو لویو خانانو هم د اصلاحاتو د پاره د دهٔ کوششونو ته د تنګ په نظر کتل او د دوی خیال وو چې بیدار او ویښ پښتون د دوی د مفادو د پاره خطره جوړې دې شي. مالداره کسان همیشه د ناداره اولس د اِتفاق او بیدارۍ نه یره کوي او په دا وجه هغوی دا کوشش کوي چې ناداره او بې وسه اولس تل د پاره همدغه حالت کښې وي. دا هم یوه صحي خبره ده چې ملایانو هم د داسې تیپو تحفظ کولو او په دا وجه باچا خان یوائې وو او د انګریز مالداره خانانو او ملایانو قوتونه د دهٔ خلاف ملګري شوي وو.

ناخواندګي دومره زیاته ده چې کلیوال د ځان ملګري کولو د پاره د ذاتي رابطې ضرورت وو. خان په صوبې کښې د هر یو کلي دوره کولو کوشش اوکړو. دهٔ سره به پنډوکې کښې دوه جوړه کپړې وې او نور ضروري شیان به ورسره وو. دې به کله په خپلو خپو سفر کولو

اترې کولې، هغوی ته به یې د قامي تحریک پیغام رسولو. کله کله به د دهٔ ملګرو رضاکارو دَ ډرامو په ذریعه کلیوالو ته د عدم تشدد د فلسفې سبق ورکولو.

چې دې به آخري کلي ته اُرسیدو. د دهٔ پروګرام کار به د کلي جمات ته ورتلل وو. دهٔ به هلته جاړو اُوهله. دهٔ د جادو وهلو مطلب دا وُو چې زهٔ ستاسو خدمتګار راغلې یم. ستاسو باچا نه یم. باچاخان دَ پښتنو په طبیعت رسیدلې دُو. دهٔ ته علم وو چې پښتون په خپلو کښې د برابر تیا په اُصولو عمل کوي. دې به کلي کښې اکثر د غریب میلمه وو. دهٔ به د ماشومانو سره مینه کوله او اکثر به دوه ماشومان دَ دهٔ په پلنو اُږدو ناست وو او دهٔ به د کلیوالو سره خبرې اترې هم کولې. دهٔ به دوی ته خپلو کښې د رورولۍ، مینې او محبت سبق ورکولو. که چېرې به وه اوهٔ که جمات، دهٔ به د کلیوالو سره دا دوه خبرې کولې چې زموږ دتحریک مقصد خپل وطن د غلامۍ نه آزادول دي او غریب

کول. دَ پښتنو دَ دې لوې مشر دا اِرادہ وہ چې د هېواد زنانه هم را بيدارې کړې شي. ولې چې د زنانه وُو د بيدارۍ نه بغير قام پر مخ تګ نه شي کولې ده دَ زنانه وو د را وېښولو کار شورو کړو او بس په يو کام پښتنو زنانه وُو ته زړه د نيا شانه کړه. دهُ بهائي زړو کښې د زنانه وُو يوې غونډې نه د تقرير کولو په وخت اووې چې :

"زه نن يوه خاص قسم خوشحالي محسوسوم ولې چې زهٔ بهارت کښې چرته هم لاړم او ما دَ هندوانو او پارسيانو زنانه اُليدې نو ما به دا سوچ کولو چې يا الله داسې ورځ به هم وي چې زهٔ به پښتنو زنانه وُو کښې داسې بيداري اوليدې شم. دا د لوې الله مهرباني ده چې ځما خوب نن رېښتونې کيږي."

د الله تعالیٰ په نظر کښې سړې او ښځې کښې څه فرق

دا موږ یوه لویه غلطي کوو چې زنانه وو ته سپک کورو۔

که موږ کامیابي اُمونده او خپل وطن مو آزاد کړو، نو ستاسو سره دا لوظ دې چې تاسو ته به ستاسو حقونه ورکولی شي د قرآن مطابق ستاسو برخه د سړو سره برابره ده۔ تاسو باندې زور زیاتې نن ځکه کولې شي چې موږ ستاسو په حق کښې د الله او قرآن وینا هیره کړې ده۔ نن موږ د رواجونو په زنځیرونو تړل شوي یو او په تاسو زیاتې کوو۔ دا د الله تعالیٰ شکر دې چې موږ دا خبره محسوسه کړې ده چې زموږ ګټه او تاوان ترقي او تنزّل، غم او خوشحالي شریک دي"

انګریز دا غوښتل چې باچا خان د پښتونخوا د دورې نه لاس په سر شي۔ د پښتونخوا حکومت واکسرائې ته دا اطلاع ورکړه که باچا خان د دورې نه لاس په سر نه شو نو موږ د ده د ګرفتارولو اراده کړې ده۔ ګاندهي په دې خبره احتجاج اُوکړو او وې وئیل چې که باچا خان اُنیولې شو نو د حکومت سره به

شو ولی دَ دهٔ ځوې دیواداس ته د پښتونخوا د دورې کولو اجازت ورکړې شو. هغه رپورټ ورکړو. چې حکومت د باچا خان نه ځکه یرېږي چې باچا خان پښتنو ته سیاسی شعور، پوهه او بیداري ورکول غواړی. دهٔ د پښتونخوا د شپږو ورځو د دورې نه پس خپل رپورټ کښې اووې چې:

" ما دا خبره محسوسه کړې ده چې د باچا خان عزت هغه کسان هم کوي چې دهٔ سره مخالفت لري او دَ دهٔ د قوت او دَ اولس سره د دهٔ د تړون نه متاثره دي." •

پښتانه د باچا خان نه متأثره دي او دَ دهٔ دَ شخصیّت اثر داسې دې لکه جادو. باچا خان د پښتنو د خدمت په جذبه کښې آرام کول هیر کړي دي. دې د یو کلي نه اوځي او په بل ورننوځي. داسې ښکاري لکه چې دَ دهٔ خپل کور نه وي او د هر پښتون کور د ده خپل کور وي. دې دَ اولس سره کیښني پاڅي

کښې دي، اُولس هم دغه سره ښې کچه مینه کوي"

حکومت د هر یو سړک سره څلورو میلو فاصلې کښې په غونډو پابندي اُلګوله او د انګریزانو د مخبرۍ د محکمې افسران به هر وخت دغۀ پسې لګیدلي وو. دَ برطانې اخبارونو کښې به د دغۀ په بابله ځنې عجیبه او دروغه خبرې لیکلې شوې" ډیلي ایکسپرس' په باچاخان الزام اُلګولو چې دغه د انګریز حاکمیت خلاف جهاد شورو کړې دې. "ډیلي میل" اَووې چې (پښتونخوا) خود روس پهړنه چوکه ده. دې اخبار لیکلي وو چې د روس له اړخه پسې نګې پښتونخوا کښې تقسیمولې شي او د دې سیمې پښتون د انګریز سره د جنګ د پاره تیاره دي شي" دغه اووې چې د دې پښتنو مشر د جیل مرغۍ (JAIL BIRD) باچاخان دې څوک چې د انګریز نه سنړیکیدونکي او نه پښیمانه کیدونکي دښمن دې.

د دکاوټونو باوجود باچاخان د پښتونخوا دکلو د دورې نه لاس په سر نشو. د رسنئم په کلي دفعه یو سل څلور

اُکړي ولې چې دا د لوظنامې خلاف ورزي ده. ده اُووې چې د مرګ نه مه ېرېږئ.

" دفعه یو سل څلور څلوېښتم (۱۴۴) ستاسو ازمېښت دې که تاسو د دې حکم خلاف ورزي اُنکړې شوه نو تاسو به د جنګ مېدان ته څنګه را اَوتې شئ د انګرېز سرکار د دې حکم هيڅ پرواه مه کوئ. تیار اوسئ او د عدم تشدد مېدانِ جنګ ته رَاشئ. د عدم تشدد جنګ مقصد هغه جنګ دې چې ستاسو مشرانو څوارلس سوه کلونه اَکاهو کړې وو.

په خپل ځان خپله حکومت کوي او د بل چا حکومت او حاکمیت ته غاړه مه ږدئ. ملا تړلې اوسئ او ځان د غیرو د حکومت او واک نه آزاد کړئ. که تاسو د جنګ په مېدان د وطن د آزادئ په هسه کښې مړه شوې نو څه خبره نه ده ځکه چې مرګ خوهسې هم حق دې."

د پښتونخوا په سیمه تاؤ تریخوالې زیات شو

په خدائي خدمتګار کارانو زور ظلم کوئ هغه وخت پوهېږې زه د انګرېز سرکار سره د ناسته پاسته قائل نه یم. ګورنمنټ په خپله خبره ولاړ وُو. ده د باچاخان د راوستو د پاره د پولس نه کار واخستو خان ده ته اووې چې ګوره! زهٔ ساده بنیادم یم. زما سره ساده خبرې کوه چړې نخوې مې زده نه دي.

کمشنر ورته ځواب کښې اُووې چې سیاست د شطرنج لوبه ده. زهٔ نا ته ماتې درکوم او نه ماته ــ که راکوې شې ؟

که ستا دا خیال وی نو زه هغه شطرنجي سړې نه یم چې ته یې لټوې. باچاخان دا اوئیل او راپاخېدو.

کمشنر ورته اووې چې لږ دېخوا پام اُکړه. ګوره! دا تهول کسان، کمشنر د انتظار د کمرې په لور مخ واړولو ځما سره د لیدو د پاره د جرګو ورځو راسې انتظار کوي. دا هم خانان دي او کلیوال سپین ږیري دي او بل

دا به ستا نه څه غواړي زړهٔ ستا نه هيڅ نه غواړم - ځما هيڅ نه دي پکار - ما ته ستا د ليدو د پاره د انتظار ضرورت نشته.

سر رالف د باچا خان په دې خبرهٔ ميڅ په زوره او وهلو ده او وې چې " دا يو بد قسمته حکومت دې چې ايماندار خلق ترنه ځان لرې ساتي او بې ايمانه، خود غرضه او لالچي بنيادمان ترنه تاؤ را تاؤ دي د دې حکومت هيڅ مستقبل نشته. بربادي د دې مقدر ده"

خان او کمشنر د خپلو اختلافاتو په بابله خبرې اترې اوکړې د خان خبرې ساده او عام فهم وې. ده سر رالف ته اووې چې تاسو د پښتنو قبائيلو په وژلو او تباه کولو کومې پيسې خرڅ کړې که دا تاسو ددوی د پارهٔ په وړو وړو کارخانو جوړولو او سکولونو او سړکونو خرڅ کړې وې نو پښتون به ستاسو دښمن نه دوست او ملګرې وُو. تاسو ته به د پښتون نه د بريدو څه ضرورت نه وُو. څومرهٔ پورې چې بهارت

خلاف جنګ کول غواړي، موږ د خپلې خاورې او خپل وطن د تحفظ د پاره خپل هر څه قربانولو ته تیار یو.

د خبرو اترو نه پس سر رالف دا اُمید ښکاره کړو چې زموږ لیډل کتل به هم داسې کیږي، خان ورته اووې چې صحیح دي اووې. لیډل کتل به کیږي خو بیا ته یه بیا هم د پولس رالیږلو ضرورت وي.

هغه وخت د پښتونخوا انګریز حاکمانو به په خپلو مخالفینو الزامونه لګول ولې هغوی ته دا علم وُو چې د احترام قابل خلک دي. انګریز د پښتنو قبائلو د جرأت همّت او مړانې نه ښه متأثره وو او چې دوی به ځانته وو نو د پښتون د میړنتوب ستائینه به یې کوله ولې بیا هم ده باچاې د تحفظ په لړ کښې ده خپل فرائض په ښه توګه ادا کول سر رالف باچاخان ته په مخه اووې. د وائسرائې د لیدو په غرض دلی ته روان شو، په شلم نیټم د سمبر د هلته نه راواپس شو او باچاخان، چاکتر خان، ولي، غني، علي ـ تهول

د انګریز سره روغه جوړه ختمه شوې وه، کال نولس
سوه یو دیرشم کښې د کرسمس په موقع فوځ پیښور
ولقه کښې واخستو. دَ نرم طبیعته اِروِن په بدل کښې
سخت مزاجه وائسرائې راغلې وو. دهٔ دَ لندن نه دَ
ځان سره دا هدایات راوړي وُو چې دا ځل هیڅ
رو رعایت نه دې په کار. دهٔ ته د پښتونخوا په بابله
داخاص هدایت ورکړې شوې وو چې د سرخپوش
تحریک نوغه آباسه او دا بیخي تباه او برباد کړه.

ګاندهي د کال ۱۹۳۲ء په څلورم جنورۍ نیمه شپه
ګرفتار کړې شو. دهٔ د ګرفتارۍ په وخت یو دوست
انګریز ښاغلي ایلون ته اووې چې پښتونخوا ته اُرسه
او د هغه ځائې د صحي حالاتو نه د بهارت اولس خبر
کړه. ایلون سمدستي پښتونخوا ته اُرسیدو او دَ
هغه ځائې د حالاتو په بابله یې د شلو صفحو رپورټ
را اُلیږلو. دهٔ لیکلي وُو چې "د پنځولسم د سمبر

په ایمانداری سره د خپل کور او کلي درک ورکوي. بیا د نوځ یا د پولس یوه دسته د شپې مالِ کلو ته ورځي او دَ رضاکارو په کورونو چاپې وهي.

د نوځ یا پولس داسې دسته اکثر د سحر درې بجې کلي ته ورسي د کلي نه تاؤ شي. سپین دوبو او شرانو ته حکم ورکړې شي چې د خپل کلي سرخپوش موږ ته حواله کړئ که دوی انکار اُکړي نو دوی وهلې او ټکولې شي. که څوک سرخپوش دوی ته په لاس ورشي نو گرفتارولې شي، وهلې او ټکولې شي، د دوی یونیفارم د دوی نه ایستلې شي او سوزولې شي.

کلي کښې د خدائي خدمتگار تنظیم دفتر وران ویجاړ کړې شي. پولس په کورونو ورننوځي او چې څه ورته په لاس ورځي هغه د ځان سره اخلي. هیڅ ته دا علم نشته چې آیا هغه محفوظ دي او که نه دي محفوظ.

ایلون (ELWIN) چا نه چې گاندهي د پښتو نخوا

چې د خدائي خدمتګارو دا فتنه ختمه کړو. ایلون ته اوئیل شول چې د دې تنظیم خلاف کاروائي کښې په جلوسونو ډزې شوي دي، د خلقو جائیدادونه ضبط کړې شوي دي. کورې وهلې شوي دي. د جرمانې وصولولو په غرض کلي تالا تړغا کړې شوي دي دې نه کښې یو پولسوال او وې چې انګریز سپایان د مغلو په چول پیسې راټولوي.

یوائي پېښور کښې پنځه دیرش سوه کسان ګرفتار کړې شوي ډویلسم جنورئ پورې چې کله ایلون بنارا ته راسید و، یو سرخپوش په نظر نه راتلو. سرکاري اهلکارو په ډېره په ډاډ او ژړ ودنیا دا خبره کوله چې" دې نه د پښتنو سیمه وائي،" د بهارت اولس ته خو د پښتنو په حقله څه معلومات نشته کنه؟

ایلون دوئ ته ځواب کښې او وې چې د بهارت د کوزه سیمو اولس هم کم نه کم په دې خبرې رسیږي چې [illegible]

خلق دي. دا د مينې او محبّت اولس دې او په سنړکو کښې مينه لري. ايلون وائي چې ما د دوئ نه تپوس اُکړو چې ټول څه کيدونکي دي؟ دوئ اووې چې دا ولېل خوګرانه خبره چې څه کيدونکي دي خو موږ به هر څه کوو موږ خپل سرونه هم ورکولې شو خو دا زور ظلم او زياتې د جوابي حملې نه بغير زغمل او برداشت کول هم ممکن نه دي.

ستاسو څه خيال دې چې تشدد ستاسو مدد کولې شي ايلون تپوس اُکړو. نا ــ بالکل نه !

نو بيا تاسو په عدم تشدد يقين لرئ او کنه؟ ايلون تپوس کوي بالکل. موږ د زړهٔ د اخلاصه په عدم تشدد يقين کوو.

دا خبره څه پټه نه ده چې پښتون يو کم لوستې اولس دې. دوئ دَ وسلې سره ډيرهٔ مينه لرى. دَ دوئ د غيرت او خود دارئ کم نه کم معيار دا دې چې

ګټونان کړه او د عدم تشدد په لاره روان شول ـــ د هندوستان د آزادۍ په تحریک کښې دا خبره بیا بیا کوله شي چې دې تحریک کښې تر ټولو لویه معجزه د پښتون په عدم تشدد عمل کول ؤ. دا څه وجه وه چې دوی د باچا خان په دې خبره روان شول ؟ ـ دا ځکه چې دوی ته دا علم ؤ چې باچاخان د دوی د پاره ژوند تیروي. دا هم یو حقیقت دې چې د هندوستان سیاسي مشرانو کښې باچاخان جیل کښې زیات وخت تیر کړو ولې بیا هم د ده اثر کم نه شو.

باچاخان د عدم تشدد د تحریک د کامیابۍ تشریح په دې ډول اوکړو.

" زموږ په صوبه کښې دوه قسمه تحریکونه چلیدلي دي. د تشدد تحریک ر د کال نولس سوه نولس نه اکاهو بغاوتونو) ـ د تشدد خلاف د اولس په زړونو کښې د تحریک د پاره مینه او همدردي پیدا کړه. که د تشدد په تحریک کښې به یو نو نکې اوژلې شو نو نه یواځې د هغه قاتل

تشدد تحریک کښې موږ په خپله ځان ګرفتارېږه ته وړاندې کوو، تکلیف او ظلم برداشت کوو او په دې وجه د تحریک سره د اولس مینه او همدردي پیدا شوه"

ایلون خپل رپورټ کښې لیکلي وو چې د تشدد پیښې شوي دي خو د تشدد دې پیښو کښې څنه داسې واقعات شامل وو چې ماشومانو د پولیس یا فوځ سره شرارت کړې وو او چې پولیس او فوځ په اولس کوم زور ظلم کړي ؤو دا د تشدد د یو څو پیښو مقابلې کښې ډیر سیوا ؤو او څه جواز ( ؟ ) نه وو۔

ایلون دې لړ کښې د کمشنر راف ګرفتي سره د مرکې خوا اګړو چې د حکومت نقطه نظر معلوم کړي خو بناغلي ګرفتیه ایلون ګرفتار کړو او په ړومبني ګاډي کښې بې دپښتونخوا نه اُلیږلو۔

ایلون خپل رپورټ کښې په دې نتیجه را اُرسید وچې حکومت امن قائمولو کښې کامیاب شوې دې خو دا دصحرا امن دې۔ د دې امن په نتیجه کښې ژوند بې خوندہ

سر احتیې دي. انګریز زور هم کولې شي او ظلم هم ولې
دې به کله هم د آزادۍ سره د پښتون مینه او جذبه اُنه
چقولې شي؛

باچاخان د پښتونخوا نه بوتلې شو او د هندوستان بهار
صوبه کښې جیل کښې واچولې شو. دې جیل کښې ځانته یواځې
ډُور. دَه ته به اخبارونه نه شو ورکولې، چرته به ده ته
نشوې ورکولې او د هیچا سره ورته د خبرو اترو اجازت
نه وُو. جیل کښې نورو قیدیانو ته دا اجازت هم نه وُو چې
د دَه د کوټنړې په وړاندې تیر یا راتیر شي.

د کال ۱۹۳۴ء په اپریل کښې ګاندهي د سول نافرماني تحریک
ختم کړو ولې چې د دې تحریک زور ختم شوې وو. ټول سیاسي
قیدیان را خوشې کړې شول خو باچا خان جیل کښې اُسائلې شو.
جیل کښې د باچاخان صحت نور هم پریوتو آخر یو انګریز اهلکار باچا
خان ته جیل کښې ملګرې ورکړو د باچاخان دا ملګرې د دَه رور
ډاکټر خان صیب وو. دلته دا خبره کول بې ځایه نه ده چې باچاخان
ته څه سزا نه وه ورکړې شوې. انګریز سرکار دې پخپله خوښه ذرې

## دولسم باب

# حضرت بلچاخان

# او د بنګال مسلمانان

## (اګست - دسمبر ۱۹۳۴ء)

زه چې کله هلک وم نو بنه زیات غصه ناک وم د پښتنو ګرمه وینه ځما په رګونو کښې اوړ بده راډ ړ بده چې کله زه جیل ته لاړم هلته به ما د قرآن پاک مطالعه کوله ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ژوند واقعات اُوستل، د ده د صبر او استقلال او د تکلیفونو قیصې مې اُوستې. زه چې ماشوم وم نو هم ما دغه قیصې اورېدلې وې ما چې کله د ګاندهي سره اُلیدل او دده عدم

د پښتونخوا په خاوره انګريزي اثرات په مشکل کښې ننتي وو. دوئ دا نه غوښتل چې خان د خپلې صوبې ته واپس شي ولې دوئ په دې هم نه پوهېدل چې دې څنګه جيل کښې د زياتې مودې د پاره اُساتو. د کال ۱۹۳۴ء په کومه کښې دوئ يو حل اُموندو او په دلى کښې يې خپل حکومت ته داسې اطلاع ورکړې وه:

"سياسي ماحول کښې داسې افواکانې خورې دې چې کله کانګريس چې خپله روټه ختمه کړي نو د هغې نه پس به دې د پښتو په دوره راځي. داسې ګمان کولې شي چې دې به خپل ټول پام د عبدالغفار خان د راخوشي کولو په لور اوګرځوي.

د دې صورت حال ممکن حد پورې مقابله کولو او دهٔ نه د لوړې د هړتال بانه نه ورکولو ښه ځواب دا کیدې شي چې د بهارت حکومت د باچا خان او ډاکټر خان صيب په راپرېښولو غور اوکړي خو په دې شرط چې دوئ دواړه نه پنجاب، کشمير يا پښتونخوا ته د تلو

دې چې هغوی د وهم نه حده ده پسې روان دي د دوی تقریرونه په موجوده حالاتو کښې د اولس په جذباتو او احساساتو اور لګولي شي. په دا وجه دا تجویز کولې شي چې دوی ته دې په هیڅ صورت پښتونخوا ته د واپس راتلو اجازت ورنه کړې شي"

باچا خان او د دوی رور ډاکټر خان صیب د کال ۱۹۳۴ء په ۲۷. اګست د هزارې باغ د سنټرل جیل نه راخوشې کړې شول خو پښتونخوا ته د دوی په راتګ پابندي الګولې شوه. ولې چې دوی خپل کور او وطن ته ستنیدلې نشول، دوي د ګاندهي په بلنه مرکزي بهارت کښې د ګاندهي نوې آشرم ته څه وخت تیرولو په غرض لاړل باچا خان وړاندې څو څو وارې د ګاندهي سره لیدل کتل کړي وو ولې د ګاندهي سره بې وخت نه وو تیر کړې مسلسل کار، د جیلونو ژوند او د تحریک ناروز ګار تیا ګانو د بهارت دا دوه عظیم شخصیتونه د یو بل نه لرې ساتلي وو.

هغه دا نه غونبتل چې اولس د تره تاو را ماو وي دګ به ونیل چې زګ هم د دوی په خیږ یو سړی یم ـ دګ به ونیل چې د الله د پاره ما ته ـ بنتون ګاندی مه وایئ. ګاندهي یک یو دې ـ دې مهاتما ګاندهي دې چې د هندوستان د آزادۍ د پارګ کار کوی او موږ ته په کار دي چې د هغه ملا تړ اکړو، هغه زموږ جرنیل دې او جرنیل یو وي،

که څوک دا تپوس اوکړي چې د باچا خان د جدو جهد نه بغیر به هندوستان آزاد شوی ؤو اوکنه؟ نو د دې سوال ځواب ډیر ساده دې دباچا خان د جد و جهد شخصیت او ملګرتیا نه بغیر به د انګریز لاس نه دو مات شوې.

د مالګې د ستیاګرګ راسې ګاندهي په ټوله نړۍ مشهور شوي وو دې د سیاست د طوفان نه د بچ کیدو په خاطر د مینځنی بهارت یوې کومې سیمې کښې د علاقې د یو غریب او نادارګ کلي سرګ نزدې میشته شوي وو دګ غونبتل چې

د عدم تشدد په ذریعه د ژوند تیرولو او جنګ کولو طریقه ښودلې وه. د ګاندهي د آشرم د دغه مقصد ووچې دوستو سیواګرام بلل کیدو.

دواړه دونږه د ستمبر په میاشت کښې آشرم ته اُرسیدل او ډیر زر د ګاندهي د عقیدتمندو، ماشومانو او چیلو او د ګاندهي د لیدو د پاره د لرې لرې نه راغلیو میلمنو او مریدانو سره بلد شول.

د لته آشرم کښې ژوند ساده او سخت وو. د دواړو دونږو دا ژوند خوښ وو. د دوئ خوراک ساده وو، کاربه یې کولو او د ګاندهي په ملګرتیا کښې به یې د کلو دورې کولې او اولس ته به یې د حفظانِ صحت د بنیادي اُصولو خبرې ښودلې. ډاکټر خان صیب یوه وړوکي دواخانه پرانسته او په باقاعده ډول به کلو کښې ګرځیدو او د اولس علاج به یې کولو او خان په کدهر د کپړې جوړولو چل زده کړو.

دا دواړه دونږه داسې ساده وو چې د ګاندهي آشرم یې په خپلې سادګۍ ښائسته کړې وو. ګاندهي په خپله

په نوم د دوی د ژوند حالات اُلیکه. ګاندهي د دې کتاب په سریزه کښې اُلیکل چې:-

" چې څومره څو څا پیژندګلي د دې روښو سره سیوا شوه داسې زۀ د دوی په لوړ ناکاړلې شوم. د دوی مینې او خلوص بې تکلفي او سادګي زۀ حیران هم کړم او متأثره هم. ما دا هم اُکتل چې په عدم تشدد او حق پرستۍ د دوی عقیده ډیره کلکه او ژوره ده. په کثرت روږ (باچاخان) د مذهب پوخ اثر دې خو دې تنګ نظره مذهبي انسان نه وو. ذ دهٔ فکر عالمګیر وو او د دهٔ سیاسي د مذهبي مطالعې نچوړ وُو."

ډیسائي د خان د روحاني مزاج په بابله په دې ډول لیکي:

" زۀ چې څومره غور کوم روحانیت دهٔ کښې د هر څیز نه لوړ دې ښا دا چې د اسلام ریښتوني جذبه. دهٔ خان خیل الله نه ورسپارلې دې. دهٔ

د پاره څه کښښ لري. دا د ګاندهي د ملنګۍ او
فقيرۍ خالص ثبوت دی او ځان خالص او سوچه
ساتلو باندې د ده اسرار دی چې د ځان د پاره
څه مقصد او کښښ لري او د ۱۹۱۹ء راسې دخان
خیل ثبوت هم د ځان خالص او سوچه ساتلو
د پاره يو مسلسل او باقاعده جد وجهد دی؟

اکثر به ماته ګوره دوی د هغه پټو او پولو او
باغونو په بابله خبرې اترې کولې چې د نيو د ډيو
کلونو راسې دوی نه وو لیدلې. دوی غوښتل چې
ګاندهي جي پښتونخوا ته لاړ شي او هلته د دوی سره میشته شي ده
به ګاندهي ته ویل ته ویل چې ته خپل آشرم هلته هم جوړولی
شي. د سیند به غاړه به ګرځي. د دنیا په خپل راسې
ښائسته ځائې نشته. د پښتنو وادې د میوو دانو
ډکه ده. هلته به آرام اُګرځې موږ ستا د پاره د ښه
خوراک بندوبست کولی شو او ته به هلته غوښه واخلې
باغ به شي او وزن به دې سپول شي.

او د دې لوی زړه لرونکي رغنو سره په کهنتو
خبرې اترې اوکړې د چا د ګرمجوشۍ او مینې نه چې
ګاندهي ښه متاثره وو. ګاندهي لیکلي وو چې د دې
دوړو ملکوتیا او دوستانه د الله تعالیٰ د اړخه ځما
د پاره یوه تحفه ده. چې د دوی سره څوک دېرنیات
ایسار شي، د دوی سره هې نوره زیاته مینه پیدا شي
دا دواړه څومره شائسته، ښه او ساده کسان دي ولې
بیا هم د دوی په خبرو کښې او د دوی په شخصیتونو
کښې څومره کشش او اثر دې. د دوی خبره یکه یوه خبره
وي.

ماښام به د آشرم اوسیدونکي او میلمانه د نیم د
ونې لاندې د عبادت د پاره ټولیدل. دې غونډه
کښې به مذهبي سندرې ویلې شوې او د مختلفو
مذهبونو د عاګانې به کولې شوې. خان به د ګاندهي
په خوا کښې ناست وو او ناستو کسانو ته به یې د قرآن
مجید سورتونه اورول او په مطلب به یې پوهول دا چې

او عقیدې د تعلق نه اوچته شوې وه. ګاندهي یو هندو وو ولې د باچا خان په نظر کښې دَ ډیرو لوړو لوړو مسلمانانو نه ددوند وو باچا خان مسلمان وو خو د ګاندهي دَ ستر ګو نور وو. کله کله به داسې اوشول چې د باچاخان نه به د نظرچلې چشمې هیرې وې نو دګه به د ګاندهي چشمې استعمالولې د دګه په لوېځ او پراخه ځ به د ګاندهي وړوکي وړوکي چشمې داسې ښکارې ې چې سړي ته به وړلېسې خندا ورتله.

دې دواړو دوئو کښې د طبیعت فرق وو. ډاکټرخان دوستانه مزاج لرو، او نرم خویه وو. یورپ کښې د استوګنې په وجه هم دهٔ په مزاج کښې نرمي پیدا شوې وه او خان په بنیادي ډول یو مذهبي فکر لرو او ډاکټر خان دنیادار وُو باچا خان حیران کوونکې حد پورې ساده وُو او فطرتًا منظم وو او ډاکټر خان یو بې فکره بنیادم وو. ډاکټر خان به اکثر ټوقو کښې وئیل چې ځما د برخې مونځ هم باچا خان کوي. او منکر نکیر سرهٔ به ځما د پاره سوال جواب هم کوي او باچا خان به د دهٔ په ټوقه موسیدو.

اسمبلۍ د پاره د پښتونخوا نه نمائنده اُغوښتې شو نو مشر ورور ډاکټر خان د دې غرض د پاره تیار شو. دا دو ره خدائي خدمتګاران وو خو د دوئ د بیلو بیلو او جدا طبیعتونو متعلق هم دا ګیدې شو چې دا دواړه د بیلو بیلو کاردونو د پاره موزون مزاج لري.

ډیسائي لیکي :-

" دِ دواړو ورونو بې مثاله قربانۍ ورکړې دي دوئ د آزادۍ په لاره داسې تکلیفونه تېر کړي دي چې ډېرو کمو کسانو ته هې تجربه شوې ده چې په خپل پښتون اُولس د دوئ خومره ژور اَثر دې دا دې قربانو او تکلیفونو په وجه ده او د دې نه هم زیات دا د دوئ د روزمره ژوند اثر دې دا د یوې مالداره او امیرې کورنۍ غړي دي خو داسې ساده ژوند تیروي چې بدل هې ناممکن دې "

هم حیران وو. چې باچا خان یو ډیر پراخ ذهن لرونکې مسلمان وو. ګاندهي یوه ورځ د باچا خان نه د ډاکټر خان صیب د د انګریزي ښځې په بابله تپوس اُوکړو چې هغه مسلمانه شوې ده؟ خان ورته ځواب ګښې اووې چې تاسو به ځما په دې جواب ضرور حیران شئ چې ما ته دا علم نشته چې آیا هغه مسلمانه ده او که نه عیسائۍ ده. ګاندهي به د مذهبي عقیدې نه د لا تعلقۍ په دې خبره د باچاخان نه ضرور ښه ډیر متاثره شوې وي ولې چې دا یو داسې تپوس وو چې د مسلمان په نظر ګښې بنیادي اهمیت لري. ځما خیال دې، باچا خان اووې چې هغه ( د ډاکټر خان صیب انګریزه ښځه) مسلمانه شوې نه ده او هغې ته مکمله آزادي حاصله ده چې په خپله عقیدې ولاړه پاتې شي. ما د هغې نه په دې بابله چرې تپوس نه دې کړې او ما ته د تپوس کولو څه ضرورت دې؟ آخر یو خاوند او یوه ښځه په خپلو بیلو بیلو عقیدو ولاړ ولې نشي پاتې کیدې؟ آخر د وادهٔ په وجه دې یو کس عقیدهٔ ولې بدله شي؟

چې په زړګونو مسلمانانو کښې یو مسلمان ته هم د اسلام د صحي روح علم نشته. ځان خپل فکر دا دې چې زموږ د جګړو بنیادي وجه دا ده چې موږ دا حقیقت نه منو چې هره یوه عقیده د خپلو پیرو کارو د پاره ښه کاني الهام لري. قرآن مجید ښه په صفا ټکو کښې دا خبره کوي چې الله تعالیٰ ټولو قامونو او اولسونو ته پیغمبران لیږلي دي. دا ټول اهلِ کتاب دي او لکه څنګه چې یهودیان او عیسایان اهلِ کتاب دي هم داسې هندوان هم اهل کتاب دي.

باچا خان خپلې څوارلس کلنې لور مهرتاج ته اُلیکل چې د لندن نه وارد ها ته راشه او د لته آشرم کښې شرکت اُکړه. مهرتاج نومبر کښې را اُرسیده. غني هم څو ورځې پس دلته راغې. ده امریکې کښې د پیسو ټکو د کمې په وجه هلته د یونیورسټۍ تعلیم نیمګړې پرېښې وو. ولي او د خان دولس کلنې څوئې علي هم د دوی سره یوځای شول وارد ها کښې د دوی د ګرفتارو نه پس مدې کاله کښې

ګاندهي زړه نه وو چې باچا خان دِ هلته لاړ شي ځکه چې د هغه دا خیال وو چې حکومت به دا خبره څو بسه نه کړي چې یو نود او مینه ناک پښتون دِ ډېرقطبي بهارت غیر فعاله مسلمانانو سره رابطه جوړه کړي. حکومت به د مداخلت کولو د پاره لاره سموي او دا ډېر امکان وو چې دې به ګرفتار کړې شي. خو باچا خان د بنګال په لور روان شو او دا یې هډو پروا اُنکړه چې د ده سره څه کیدې شي. ګاندهي هم ده سره د تلو په وخت کښې څه ضروري خبرې اتورې اُکړې.

ګاندهي ده ته اُو ئیل چې دا وخت د ګرفتارئه ورکولو او جیل ته د تلو د پاره مناسب نه دې. ګاندهي ده ته مشوره ورکړه چې هندوستانیانو ته د انقلاب بل څه څرګند کړه.

د انقلاب نعمیري اړخ.

خان په کلکته کښې بنګالیانو ته ځای په ځای تقریرونه اُکړل. ده بنګالي ځلمو ته هدایت اُکړو چې تاسو هم خدائي

هلته هغوی ورېږي وي. ده کلکته کښې د بنارُ اسیدونکو بنګالیانو ته داخواست هم اُکړو چې د کلیوالو او کلو حالت بنهٔ کولو په لوړ خپل پام واړوي.

دهٔ چې خپله دوره ختمه کړه، باچا خان د بنګالیانو سره دا لوظ اُکړو. چې زهٔ به دَ دسمبر په شورو کښې بیا راځم او تاسو سره به نورې ټیپې ورځې تیروم باچا خان بنګال ته د تلو اراده ځکه لرله چې پښتونخوا ته د دهٔ په تګ اُوس هم پابندي وه او که چرې دې خپلې پښتونخوا ته نشو تلې نو دهٔ غوښتل چې زهٔ د قطبي بهارت د نادارو او غریب اُولس سره پاتې شم او د دوی خدمت اُکړم. دهٔ په خپلو لاسونو خدمت کول غوښتل.

د ١٩٣٤ء په اکتوبر کښې باچا خان د ګاندهي سره بمبیٔ کښې د کانګریس کلیزه غونډې ته لاړو. دهٔ ته هلته د یوه هیرو په څېر هرکلي ورکړې شو دهٔ ته د کانګریس صدارت قبلولو پیش کش اُکړې

چې زۀ يو عاجز سپائي يم او دا ځما خواهش دې چې زۀ دَ ژوند خپلې شپې او ورځې د يو سپائي په څېر تېرې کړم، د يو جرنيل په څېر نه.

بل خوا ګاندهي د کانګريس نه په دې غرض استعفٰی ورکړه چې ځان تعميري پروګرام ته اُسپاري. دۀ دې غوندې ته اُوې چې زۀ پښتونخوا ته تلل غواړم.

"ځما دا خوښه دۀ چې د هندوستان په يو کلي کښې دفن کړې شم او دا به ډېره غوره وي که زۀ د پښتونخوا په خاوره ښخ کړې شوم. دۀ اووې چې که خدائي خدمت ګاران په صحي معنو کښې په عدم تشدد ولاړ دي نو دوی به د عدم تشدد روح او جذبې ته وده ورکولو کښې د هر چا نه زيات کار اُکړي. زۀ غواړم چې په خپله دا اووينم چې دا دعوٰی کوم حد پورې صحي دۀ چې دوی د عدم تشدد جذبه خپله کړې دۀ او دوی به د ښتيا سره او په زړۀ سره د هندوانو او د مسلمانانو

د دهٔ په فیصلو شک نه دې کړې دلې چې دې خپلې معاملې الله تعالیٰ ته سپارلي او د هغه په حکم عمل کوي هر یو عظیم مصلح هم داسې کوي او همیشه یوه داسې مرحله راځي چې هغه د خپلو پیروکارو نه لاره بیلوي ولې داسې کولو کښې هغه د خپلو خلکو سره خپل تړون نه پرې کوې. د خپل خدمت دائره نوره پراخه کړي"

دهٔ بمبۍ کښې یو څو ځایه تقریرونه اوکړل. د کال ۱۹۳۷ء په ۲۷ اکتوبر دهٔ د بهارتي عیسایانو انجمن ته د خدائي خدمت ګارانو قیصه واورو له. څنګه چې د انګریز د زور او ظلم په بابله قیصه په ورانډې تله د خان جذبات راوچنیدل او دهٔ تپوس اوکړو چې زموږ قصور څه دې؟ دا چې زموږ صوبه هندوستان ته د راننوتو دروازه ده او موږ چې هلته اوسیږو یو نو حکومت موږ څوکیداران ګڼي او بیا په ډاګه راته وائي چې "موږ څوکیدارانو ته اصلاحات څنګه ورکولې شو؟ د انګریز سرکار دا خیال دې چې که موږ ددې ته څه ورکړل نو هندوستان به زموږ د لاس نه اوځي

چې زموږ تحریک په شورو کښې اُچقولې شو. . .

موږ خپل سکولونه پرانستل خو حکومت په يوه يا په بله بانه دغه تعليمي ادارې ډيرې په چالاکۍ سره تباه کړې او زموږ ماشومان بې بې تعليمه آساتل:

موږ په پښتونخوا کښې زېږيدلي يو او دغه وجه ده چې موږ تباه حال يو زموږ ټول نوې جرم دا دې چې موږ غواړو چې د هندوستان د دروازې اُولس لوستنې او ترقي يافته وې او انګريز غواړي چې د پښتونخوا دا اولس په خپلو کښې په جنګ وي، په مقدموکښې نښتي وي، د يو لاس د بل په ګريوان وي، د دښمنۍ په ختمو لپټ پېټ وي او د سر اُچتولو جوګه نه وي او چې دوئ دومره کمزوري حالت کښې وي نوموږ ته به محتاجه وي او دوئ دِ هم داسې تباه حال، برباد او پريشان حالت کښې وي چې دوئ (انګريز) د څه رکاوټ او پريشانۍ نه بغير زموږ په اولس حکمراني کولې شي.

وئیل چې که د هندوستان زنانه را بیدارې شوې نو دنیا کښې یو قوت هم په هندوستان حکمراني نه شي کولې. دا او وې چې اولس کښې د غلامۍ إحساس بیدار وي نو د غلامۍ زنځیرونه که هر څومره مضبوط وي دا شلیږي او ماتیږي.

دې بیا واردها نه والیس شو، هلته بې د خپل کور د غړو سره اولیدل او بیا د آشرم په ناوړکار ټیا کښې ډوب شو. دا او ګاندهي به په ګهنټو ګهنټو یو ځای په دې غرض ناسته کوله چې د بنګال د مسلمانانو د پاره د اصلاحاتو څه پروګرام جوړ کړي. بنګال ته د واپسۍ د پاره د خان بهرۀ وه ځکه چې ډیره موده پس دا نه د غریبانانو سره د کار موقع په لاس ورغلې وه. دې د دسمبر په آتمه نیټه روانیدونکې ؤ. خو دې په دغه ورځ پاتې شو د انګریزانو د پاره د پنجاب په څیر بنګال هم د حکمرانۍ د پاره یوه ګرانه صوبه وه او هغوی دا نه شو برداشت کولې چې د باچا خان لوړ

په اُوم دسمبر د جیل نه د راوتو نه سل ورځې پس د پولس سپرنټنډنټ بیا په دهٔ (بسې) آشرم ته راغې او دې بمبئ کښې د باغیانه خبرو په الزام کښې ګرفتار کړې شو.

ګاندهي د ګرفتارۍ وارنټ اُولوستو او سپرنټنډنټ ته یې اُووې چې خان ته دومره وخت ورکړه چې د کور د بندیانو نه اجازت واخلي. ګاندهي دا هم اُووې چې دا وار موږ د ځان د دفاع کولو اراده لرو.

خان د ګاندهي په دې خبره بېر شو. دفاع ؟- څوک چې ستیاګره کوي هغوی د ځان دفاع په عدالت کښې نه کوي.

ګاندهي ورته جواب کښې اُووئیل چې دا مختلفه معامله ده. په دې وخت خو موږ ستیاګره نه کوؤ او موږ جیل ته هم تلل نه غواړو. د ګاندهي په دې خبره خان اُووې چې څنګه ستا خوښه وي.

چې د باچاخان ماشومان د دهٔ د ګرفتارۍ نه خبر شول نو هغوی پرېشانه شول. نو وارې بیا دَ

وُو. دې څو څو واره جيل ته لاړو، څو څو واره دا منظرونه ليدلي وو. د ډيرو مشکلاتو زغملو عمل ده ته اوس پسنه جوړه کړې وه. ډاکټر خان يو جذباتي بنيادم وُو او د خپل کشر ورور سره يې ډيره زيانه مينه وه او په دا وجه به دې د باچا خان په ګرفتارۍ ډير زهيريدو. آخر څو پورې به موږ د آزادۍ موندلو نه آګاهو جيلونو ته ځو او دا د ګرفتارۍ او جيل ته د تلو تماشه به کوُو؟ ډاکټر خان به تپوس اُکړو.

بل خوا په دې موقع باچا خان ځکه دنګيږ وُو چې دَ نيکال د مسلمانانو سره د استوګنې په بابله وعدې پوره کولو کښې خنډ پيدا شوې وُو. ده ګاندهي ته او دې چې ماخو د نيکال د مسلمانانو سره د اُسيدو او د هغوۍ د خدمت کولو لوظ کړې وو خو زه خودا وړکي شان لوظ هم سر ته رسولو کښې پاتې راغلم.

په لوظ نه پوره کيدو د باچا خان خفګان په ځای

وعده نه پوره کول یو ډیر ګران کار دی. پښتون چې وعده اوکړي هغه پوره کوي او دا یوه عظیمه اخلاقي خوبي ده داسې خوبي د نړۍ ډیر کم قامونه لري کوم چې پښتون لري او دا ځکه نګریز واکدار او غیر پښتون واکمنو همیشه داسې پالیسۍ اختیار کړي دي چې د هغوی مقصد نه د پښتون اعلی قدرونه خرابول وي

خان په تېلو ماشومانو نظر واچولو، ډاکټر خان د خټکلو نه د زمکې په لور کتل، ګاندهي د پولس افسره خبرې کولې. خان بیا د ګاندهي په لور مخ وړ وا ړولو او وې ویل چې "ځما دا پوخ یقین دی چې دا د الله تعالی مرضي ده د دې چې څومره خوښه ده زه به ې د کارکونو د پاره د جیل نه بهر آسانتیا او اوس د الله تعالی خوښه ده چې زه د جیل دننه نه کار اوکړم. د الله چې څه خوښه ده هغه ځما خوښه ده" ده نبیل بې بنګل کړل، ډاکټر خان ورته غاړه شو او ګاندهي ورولاندې شو او ده ته بې په مخه ښه اوویل. دې د پولس افسره ته نا

## دیارلسم باب

# دوه ګاندهیان ـ دوه شخصیتونه دوه ملګري او یوه فلسفه

"چې ګاندهي کله هم څه نیصله وکړي ځما دا تسلي دي چې دا د یو داسې شخصیّت نیصله ده چې ځان یې الله ته سپارلې دې او الله تعالیٰ چا ته غلطه لار نه ښائي"
(حضرت باچاخان)

بمبۍ کښې د خپل تقریر په حقله د انګریزي عدالت نه
بخښنه غوښتل د باچاخان د پاره د زړهور کوټ وو خو دوۍ

شو کله چې دا ته ودګلې شول چې تا ته د ځان د دفاع کولو هیڅ حق نشته. کانډهي هم نه غوښتل چې دې د جیل ته ارلیږلی شي. د باچا خان د پاره د کانډهي خبره د کانګري کرښه او قانون وُو او کانډهي هم که په چا مئین نو هغه یواځې د باچا خان شخصیت کیدې شو باچا خان د زهرو دا ګوټ نیږ کړو. دا ووې :

" زه یو وفادار او مخلص کانګریسي یم او موجوده وخت کښې د کانګریس پالیسي دا ده چې موږ د ګرفتارۍ او جیل نه ځان وساتو. په دې وجه ماچې څه وینا کړې ده په دې غرض مې نه ده کړې چې زه بغاوت خپور کړم. ماچې خپل تقریر کښې داسې څه وینا کړې ده هغه په غیر ارادې توګه شوې ده.

زه دا دلیل هم غواړم چې ما د خدائي خدمت ګار د تحریک په بابله څه وئیلي دي دا ما د خپلو هغه عیسایانو ملګرو په وینا او خواست وئیلي دې چې ماته هې په دې بابله د وینا بلنه راکړې وه او دې تقریر کښې چې ما څه

خو د باچا خان دا دینا کافي نه وه. انګریز غوښتل چې باچا خان د خپلې مخې نه لرې کړې شي. انګریز خو دا خبره نه شوه زغملې چې د هندوستان یو مشر دې د دوی جذبات ژوبل کړي ـ لې هغوی خپله داسې څه ذمه داري نه محسوسوله چې دوی هم د هندوستان د اولس جذبات مجروح نه کړي. مجسټریټ ایچ. پي. دستور ووې چې خان چې څه وئیلي دي دا ده ارادتًا وئیلي دي دا ډیر سنګین الفاظ دي. ده اووې چې خان یو غیر معمولي شخصیت دې ډیر اثر لري او دې چې څه وائي د هغې اثر د یو عام انسان د خبرو نه ډیر زیات او ژور دې.

ولې چې خان د ځان په دفاع کښې څه نه وو وئیلي په دې وجه مجسټریټ خپله فیصله د خان د هغې تقریر په بنیاد وکړه چې ده بمبۍ کښې کړې وو مجسټریټ د خان د تقریر هغې برخې ته خاص حواله ورکړې ده چې ده په کښې د قصه خوانۍ بازار د قتلان

الزام دي. د مجسټريټ د فيصلې مطابق د خان دا خبره چې د انګريز حکومت به بنه په سره سينه د دوه سوو يا دوه نيمو سوو بې ګناه کسانو د حلالولو نه هم څه وانه روي." مجسټريټ دوې چې داسې الفاظ د اوريدونکو په مغزو کښې د حکومت خلاف کړکه او نفرت خوروي شي،

د کال ۱۹۳۴ء کښې په ۱۵. دسمبر دې لوئ خان ته يو وارې بيا دوه کاله با مشقته سزا ورکړې شوه. دې بمبئ کښې مرکزي جيل ته وليږلې شو. دې هلته يوائې يوې کوټهنئ کښې واچولې شو. ده ته دوه کمبلې ورکړې شوې وې دې به په بربنډه فرش څملاستو او د جيل څوکيدارانو او نورې عملې ته ده سره د خبرو اترو اجازت نه وو.

د بمبئ ګرمه آب و هوا دَ ده د پاره مناسبه نه وه. ده نه به لوږه نه ږلګيده او د سختې نزلې رنځور

خواست اوکړي ثنو ځکه چې د هغه سیمې آب د هوا مناسبه وه. ولې مقامي واکدارانو د دې خیال او سفارش سره اتفاق ونکړ او ددې ووې:

" مرکزي صوبې کښې بناغلي ګاندهي هم تر نا معلومه مودې پورې دېرې اېچولې وي. وارد ها کښې د هغه کور نه د هندوستان د کانګرلیس هر یو نوموړې مشر راځي. او که سیاسي بې اطمینانیه کښې اضافه وشي د هغه کور به د داسې بې قرارۍ مرکز جوړ شي ... دا خبره غوره معلومېږي چې د بناغلي ګاندهي نه د ده د پښتونخوا ملګري لرې وساتلې شي. دا به زموږ د ذهني سکون د پاره هم سود مند وي"

د ډېر مشکل نه پس مقامي واکداران بالاخر دې ته تیار شول چې خان " الموره" ته ورسوي. دې هلته هم هغه ځائې کښې اوساتلې شو د کوم ځائې نه چې جواهرلال نهرو اوس اوس خوشې کړې شوې وو. ده به دلته

تیرې کړې.

کال ۱۹۳۲ء کښې د جیل نه په راوتو دې نیغ گاندهي
ته ورغلو دَه د آشرم ملکرې گاندهي د واردها ریلوې
ستیشن نه دهٔ ته سترې مه شي د پاره راوتې وو. دوی باچا
خان د گاډي په دریم کلاس درجې کښې ولیدو چې په یوه
تخته پروت وو، د تختې د بل سر نه یې خپې ځنګید لې
د دهٔ سر نه د ده زړوکې پروت وو. د پښتنو دا لوئې خان
او د هندوستان د آزادۍ د تحریک دا نوموړې مشر او
د صف اوّل هیرو او مجاهد داسې ښکاریدو لکه بو بې
کوره او بې وطنه ملنګ. دهٔ چې گاندهي اُلیدو نو
سر یې را وچت کړو او اُموسیدو. ده خپل څادراویو
پنډوکي کښې دوه جوړه کپړې په نرخ کښې راواخستې
او د ریې نه را کوز شو.

د انګریز واکدارو اوس هم ده ته زړه ډک وُو او
د دهٔ د پښتونخوا په تلو یې پابندي بو کال د پاره نوره
سیوا کړه. دا هیڅ اندازه نشته چې دا پابندي به کله

په جنوري کښې انتخابونه اُشول. ډاکټرخان د ډېرو ګونو میلو لرې نه دې انتخابونو کښې برخه واخسته او د پښتونخوا د اسمبلۍ د پاره منتخب شو. په ده هم د انتخابونو نه وړاندې خپلې صوبې ته په تلو پابندي وه. جولائۍ کښې دې د پښتونخوا نډير اعلئ وزارت کلې شو او ده د هر څه نه اول داکار وکړو چې د خپل ورور خلاف يې د پابندۍ حکم د چت کړو.

د اګست په آخر کښې خان شپږ کاله پس د پښتونخوا خاورې ته واپس شو. د ده پښتون سيرت نګار محمد یونس د ده د واپسۍ په بابله داسې ليکي:

" آخر د جلا وطنۍ او د جيل د سنومانه شپږو کلونو ژوند نه پس کال اوه ديرشم کښې د سنګينې الميې دا نامي هيرو د جوش او خروش او خوشحالو په نندارو کښې خپلې خاورې ته راستون شو. ده نه چې په کوم ډول او مينه پښتنو ستړې مه شې اووې هغه هيرول يو ګران کار دې او نه داسې څه جاج اخستې شې چې د هغوي په زړونو کښې ده دپاره څومره ډېر احترام وو."

په مخ د ستوماني او تکليف ډکه اثرات ښه جوت وو کوم چې په ده تېر شوي وو. دې دلته په دې غرض بيا را رسېدلې وو چې د طوفاني او سيلابي اوبو نه د تمام دَ آزادۍ کشتۍ را بهر کړي. عام انتخابونه شوي وُو او دَ دهٔ ملګرو نه د پښتونخوا د حکومت قائمولو بلنه ورکړې شوې وه. دا يقيناً چې د فتح او بريالتوب وخت وو. د ښځوېشتو کالو د مسلسل محنت او تکليف نه پس فخرِ افغان د پښتنو دې عظيم مشر ليډل چې د دهٔ پارټۍ ته د واک او اختيار بوه پېټه ترلاسه شوې وه. دا دَ دهٔ حوصله، کلکه اراده، هنرمندي او د فيصلې قوت وُو. چې د دهٔ خدائي خدمتګارانو، چې په تن لغړ وُو او تش لاس وو د انګرېز واکدار نه د اقتدار يوه برخه ترلاسه کړه او د مودو راسې د غلامۍ نه پس يې خپل ږومبۍ حکومت جوړ کړې وو.

اکتوبر او ډيسمبر د جنورۍ مياشت کښې نهرو پښتونخوا ته راغلو او د باچاخان په ملګرتيا کښې يې د هرې

وه په دې وجه واسرائې ګاندهي ته د دې صوبې د دورې کولو اجازت ورکړو.

خان د ګاندهي په دوره ډېر خوشحاله وو. دې ګاندهي ته د هغه کلي د پاره نوښار ته راوتې وو. او د هغه نه بې پېښورا کښې د ډاکټر خان کور ته بوتلو. کلي تسمير کښې خاموشه، منظم او ساده پښتانه د ده لیدو د پاره د سرکونو په څنډه ولاړ وو. ګاندهي د دوی په لیدو خوشحاله وو. په کلونو ګاندهي د اسې حالاتو سره مخ وو چې ټول هندوستان کښې په خلکو د ده سره نږدې کېدل د ځان د پاره برکت ګڼلو د ده ترخپو به پریوتل ولې د پښتنو دا دستور او داعادت نه وو، هغوی ته باچا خان د نظم و نسق او ضبط سبق ورکړې وو. هغوی به په خپل ځایه ولاړ وو او د سترګو او د مخ د تاثر نه بې د ګاندهي د پاره د احترام جذبه ښه ښکاره وه. اُتمانزو ادکېر چاپېره کلو کښې هم ګاندهي ته په دې ډول سترې مه شې اوتېلې شول. په زرګونو

د باچاخان په مخ د خوشحالۍ آثار ښه څرګند وو. دې په خپلو حوصله مندو او کلکه اولس غاړه وو. دا به دا حقیقت نه پټولو. هر یو کلي کښې به اولس د خپل باچا د لیدو د پاره راتلو. ده سره به ئې د دوست او ملګري په حیث خبرې کولې. د هغوئ د رویې نه داسې ښکاریده لکه باچا خان دوئ کښې د هر چا یو رشته دار وي.

ځنې کسانو به ورسره ټوقې ټقالې شورو کړې. او ځنې کسانو به ورسره صلاح مشوره کوله. دغه ورځو کښې د مالیې نرخ سېوا کړې شوې وو، دوئ به تپوس کولو چې آیا موږ د مالیې ورکولو نه انکار وکړو؟ دا ساده کلیوال نه خو د انګریز واکدار نه یریدل او نه د هغوئ د وفادارو خانانو نه. دوئ ځان د قوت او اختیار خښتن ګڼلو. ګانډهي د باچا خان او د ده د عقیدتمندو ترمینځه د تړون او تعلق نه ډیر متأثره

نه سنږي مه شي وئيل. داسې ښکاريده لکه دَه سره نزدې کيدل، دهٔ سره نزدې کيناستل او خبرې اترې کول د دوی د نسلي وجه وه خان به د دوی تر مينځه څه منفرد نه ښکاريدو. د باچاخان او د دهٔ پښتنو عقيدتمندو تر مينځه تعلق. زه نه يواځې حيران کړم بلکه زه ډير زيات خوشحاله هم شوم. موږ تر اوسه دا ليدلي دي چې د نوځ ديو جرنيل داسې تابعداري کيږي. ولې ما دا اُليدل چې پښتون باچاخان ته دَ جرنيل په څير تابعداري ورکوي فرق دا دې چې د يو جرنيل تابعداري د مجبورۍ له کبله کولې شي او د باچاخان تابعدارې د احترام او مينې دَ جذبې نه لاندې کولې شي."

باچاخان به دوی ته (پښتنو) ته وئيل چې د انقلاب روح ګاندهي دې. دوی به چې څرنه ايساريدل او آدريدل پښتنو او سوريو نيفارم کښې خدائي خدمتګارانو په ګاندهي سرهٔ د خپلې مينې څرګندونه کوله. يو پښتون ده نه مردان

خوښونه کړه، ګاندهي د دغه د مینې منته وکړه.

بو بل کس ګاندهي ته دوی: «چې موږ بې علمه یو، موږ ناداره یو ــ خو موږ د هیڅ ځینې کې نه محسوسو ولې چې نا موږ ته د عدم تشدد سبق ښودلی دی»

ګاندهي د رنځوری په وجه خپله دوره لنډه کړه او د تعالي کرمی کښې یې د زیات وخت د پاره د راتلو وعده وکړه. ګاندهي بیا په تفصیل سره د خدایي خدمتګار د تنظیم د مطالعې او حاج اخنو په غرض راغلی وو. ګاندهي د پښتونخوا نه د وتو په وخت دوی: «چې تاسو زړه ورتیا او ضبط او تنظیم د ټول هندوستان د پاره لوبل مثال جوړې دی شي ده اودې چې زه تاسو ته په دې زده کړه د زړه د کومې نه اُمبارکي ددکووم زه دا دعا خیل زړه کښې د خان سره ساتم چې د پښتونخوا بانور اُولس نه یواځې د هندوستان حیل رولړه د انګریز د غلامۍ نه آزاد کړي بلکه ټولې نړۍ ته به عدم تشدد د عمل کولو

خبرې اترې کول غوښتل. د ګاندهي دا خیال وو چې دَ دوی عدم تشدد لا پوخ نه دې. هندوستان کښې دَ ګاندهي د نورو پیروکارو په شان دوی د عدم تشدد په ذریعه د مزاحمت کولو د خیال او فکر سره خو بلد وو ولې دوی په دې نه پوهیدل چې د عدم تشدد په ذریعه یوه معاشره څنګه پیداوارې جوړېدې شي.

شورو شورو کښې ګاندهي اُتمانزو کښې دَ خان په باغ کښې دیره وو. زیات کار دې دومره کمزورې کړې وو چې دهٔ د اُولس سره ملاقاتونه بند کړي وو ولې چې دَهٔ د خبرو توت نه لرو

باغ کښې د ګڼو میوو او آلوچو په پټو کښې او د سیند په غاړه رو رو دګرځیدو دا ګرځیدو نه پس د ده صحت ښه شوې وو"

یوه هفته پس ګاندهي او باچاخان د چارسدې د ضلعې دَ دواړو افسرانو سره د ... په منځ کښې

د دې نه څخک نه شو کولې.

ګاندهي د دوی نه تپوس وکړو چې آیا دا حقیقت نه دې چې ستاسو عدم تشدد به هغه وخت پورې قائم وي څو پورې چې باچا خان وي؟

نا- داسې نه ده، خدائې دې نکړی که زموږ باچا خان هم په عدم تشدد عمل پرېښودو موږ به په دې کلک ولاړ یو دوی جواب ورکړو.

ګاندهي د دوی په خبرو پسې آخاندل. ګاندهي د پښتنو په حیا، رواداری او فطري انداز ډیر متین وو-

ګاندهي دوی نه اوږې چې داسې وخت کښې عدم تشدد کول چې تاسو د یو وسله بند دښمن سره مخامخ یئ یوه قدرتي خبره ده. داسې وخت کښې څو بل څه کېدې نه شي. دا څو داسې عدم تشدد دې چې دکمزورې نه کېله بېرې عمل کولې شي.

خدائي خدمتګاران افسران دګاندهي په دې خبره

کښې د ګوتو په بارانې کښې کړې ده ؟

ګاندهي خپله خبره جاري د ساتله ده اووې چې ځما مقصد دا دې چې تاسو به خپل کښې په عدم تشدد څنګه عمل کوئ ؟ ځما مقصد دا دې چې که د خپلو کمزورو کلیوالو سره ستاسو جګړه راشي او هیڅوک داسې نشته چې تاسو مخه آوهي، ما سوائې د دې نه چې ستاسو خپله اراده او ضبط تاسو په کلیوالو د زور زیاتي نه ایسارولې شي - داسې وخت کښې به تاسو څه کوئ ؟

یو افسر ورته اووې چې مهاتما صیب! مونږ ستا په خبره پوهه نه شو. ګاندهي ورته ووې چې ځما مقصد دا دې چې تاسو له په کار دي چې د چاقو اود ټوپک په ګوزارولو ځان مضبوط محسوس کړي. او که داسې نه وي، د چاقو او ټوپک نه بغیر تاسو ځان کمزوري محسوسوي نو بیا غوره خبره دا ده چې بیا ټوپک او توره راخلئ

ګاندهي ووې چې د عدم تشدد مقصد دا دې چې دَ ټوپک او توري نه بغیر هم ځان مضبوط او بادر

په ذریعه موږ د هندوستان سره بدي کوو ولې چې دَ دې په ذریعه د پښتونخوا په نورزن اولس نوره او تحریک په دې غرض تباته کوو چې د دوی دَ قوت او مرانې نه د هندوستان اولس محرومه کړې شي. ګانډهي ووې چې په موږ الزام لګوونکې وائي چې زول هندوستان کښې پښتونخوا د اسلام یوه مضبوطه قلا ده. دوی وائي چې پښتون د تورې او تحریک مړني دي او زه ګانډهي چې تاسو ته دَ تحریک او چاقو او تورې ګوزارولو کم سبق ددکووم. دا زه په زمل کښې د اسلام دغه مضبوطه مورچه د رنګولو کوشش کووم او هندوستان کښې د اسلام تحفظ په خطره کښې اچووم."

ګانډهي ووې چې زه دا الزام رد کووم. ځما داسې هیڅ اراده نشته چې د اسلام سره بدي وکړم. ده ووې چې:

" ځما دا پخه عقیده ده چې د عدم تشدد په ذریعه په تاسو نه یوائې د ټول هندوستان بلکه د اسلامي

تړي د نورو مذهبونو او عقيدو تحفظ به هم وکړي شي.

دا زه ځکه وايم چې ټول هندوستان کښې يو پښتون داسې اولس دې چې صبر، استقلال، رواداري، حوصله زړه ورتيا او جيالتيا. دا داسې خوبۍ دي چې د پښتون په برخه رسيدلي دي او په عدم تشدد عمل کول دَ کمزوري اولس کار نه شي کيدې.

ګاندهي غلې شو او دَ پښتنو د سنجيده مخونو په لورېې وکتل. ده ووې چې که تاسو د دې قوت په راز نه يې رسيدلي او د نودې او تهوپک کينولو په وجه تاسو ځان کمزورې او بې بسه ګڼې نو دا به ډيره غوره وي چې په عدم تشدد عمل کول پرېږدئ ولې چې زه دا نه غواړم چې د پښتون په شخې يو غاوره او بادر اولس دِ ځما دَ اثر لاندې کمزورې او بې بسه شي"

ګاندهي ووې چې نن ۱۰۰۸۰ سرکاري نوځ په مونږ حکمراني کوي. ده ووې چې که خدائي خدمتګاران په رښتيا د عدم تشدد قوت او روحاني طاقت

ولې که په عدم تشدد د عمل کولو دعوی س نکه کسان هم وکړي او د هغوی په زړونو کښې تشدد چې دهي دیکه به هیڅ ونکړې شي. بلکه داسې وکړي بوه خطره جوړې دې شي.

د چارسدې یو خدائي خدمتګار د ګاندهي نه تپوس وکړ د چې د زړه نه د تشدد ایستلو نه ستاسو څه مراد دې؟

ګاندهي ورته جواب ورکړ د چې د دې مقصد په خپل زړهٔ کښې د غصې او قهر په جذبې قابو موندل دي. دا په زړهٔ کښې د غصې د جذبې نوغه ایستل دي. ده وړې چې که یوکس په ما حمله وکړي، ما ته تحمل وکړي او ځما د سپکاوي هسه وکړي او ما نه غصه راشي د دې مقصد دا شو چې ما د زړه نه د غصې او قهر جذبه نه ده ختمه کړې. دا عدم تشدد یو داسې شې دې چې د دی په برکت سړې خپل زړهٔ کښې یو قوت محسوس کړي. روحاني قوت

د ماډيکو خرڅ را خوره شوه. جګړې کښې سبوتاژ را

اوږ دې شوې. ګاندهي د خدائي خدمتګار تعريف په دې

ټول وکړو چې "يو خدائي خدمتګار هغه کس کيدې

شي چې خپله مرضي خپل رب تک وسپارې. د دې

مقصد دا شو چې يو خدائي خدمتګار به پوهېزګار

او محنتي وي. ده اووې چې د تورې او ټوپک ګوزارولو

مقصد دا نه دې چې سړې د بيکاره کښيني هغه ته پکار

دې چې د کډ ګي چلولو کار دده کړي، د کوڅو او کورونو

د صفائي کار شورو کړي، د طبي امداد بنيادي کار زده

کړي او خپل الله په ياد کښې ساتي. ګاندهي ووې چې يو

داسې کس چې په دنيا سره په عدم تشدد ولاړ دي

هغه به هرې ساه اخستو سره الله ياد دي. ده ووې

چې زه د نيرو تلو کالو راسې داسې کوشم اوا وس

په خوب کښې هم الله ياد ووم.

ګاندهي ووې چې د سور يونيفارم په اچولو څوک

خدائي خدمتګار نه شي جوړې دې. او نه د خدائي

دا هغه قوّت دې چې دَ توپک او نورې دقوّت نه جُدا احساس لري. ده ووې ناسو اوس د عدم تشدد درشلې پوري را رسيدلي يې دا هم ستاسو د پاره يوه لويه کارنامه ده اوچې تاسوکله په مکمل ډول د عدم تشدد په کور ورد ننه شوه نو تاسو به ځان بيخي بدل محسوس کړه.

پنځلسم اکتوبر يودې د ګاندهي صحت لږ ښه شوې وه او دوه د پښتونخوا د سويلي ضلعو دوره په هغه ورځ کښې شورو کړه چې چوارلس ورو دوه ته ورکړې وه. دوه به په کلو کښې اوريدل، کليوالو سره به يې خبرې کولې او بيا به يې سفرجاري ساتلو. دوه د کوهاټ په دري وردا وريدل. د کرم وادۍ ته ورغلل، هلته يې ځاې په ځاې کښې د اولسي غونډو ته تقريرونه وکړل دوه يوې جلسې ته د تقرير کولو په وخت ووې چې تاسو ته پته ده چې پښتون ته د هندوستان په سيمه په کوم نظر کتلې شي؟ ده ووې چې څوک ستاسو نوم واوري د هغوه رنګونه زيړ شي. مياندې خېل ماشومان

په عدم تشدد ولاړ پاتې شو. د دې خوشبوئي به د هندوستان د اولس په زړونو ورننه شي او هغوی به د غلامۍ نه آزاد کړي. دا ووې چې اې پښتنو! د هندوستان د آزادۍ ناوې ستاسو د عدم تشدد د مړانې په انتظار ولاړه ده. دا کار یو تاسو کولې شئ.

دواړه ګاندهیان د سویل وچې او پې ځې سیمې ډیره جانو په لوړ ورغلل. خدائي خدمتګاران په میلونو اُږدو قطارونو کښې د دوی د لیدو د پاره د ښاره ولاړ وو.

اُږده اُږده او رعب ناکه وزیري او اورکزي د خپلو مضبوطو او محفوظو ځایونو نه ټوپک په اُږه د سړکونو په څنګو د دوی د استقبال د پاره ولاړ وو. ډیر به داسې وو چې ډولونه او سرنې ګانې به یې د دوی په لیدو غږولې. دغه سیمو کښې داسې ښکاریده لکه یو نختي وي او میله لګیدلې وي. د اولس په مخونو د خوشحالۍ آثار ښه څرګند وو.

په څلوېښتم دوی پېښور ته اُستېدل او [illegible]

وکړل او اولس نه بې غږ وکړو چې وزیریان بنیادمان دي، سناسو په شان بنیادمان دي. ده ووې چې که ما نه اجازت راکړې شو زه د هغوی سره اُسیدو نه تیار یم. د هغوی سره به خبرې اترې وکړم. دا څوک وائي چې وزیرې په مینه او دلیل نه پوهیږي؟

د میاشتې په آخره کښې خان او ګاندهي اُتمانزو ته واپس شول.

د باچا خان په باغونو کښې ونو بوټو پخې ځنله ولې وې. ددې به د خان په ځمکه ګرځیدل راګرځیدل او د هندوستان د سیاست په بابله به پې خبرې اترې کولې بوه ورځ د سیند په غاړه ددې د خدائي خدمتګارانو په حقله خبرې شوروکړې. ګاندهي جي د باچا خان نه تپوس وکړو چې ستا خدائي خدمتګاران په عدم تشدد څومره کلک ولاړ دي؟

ځا خپل تاثر دا دې، باچا خان اودې چې لکه څنګه چې تاسو خپله د هغوی خبرې واوریدې هغوی هغه

که ددې ته موقع ورکړې شي، ځکه خیال دا دی چې دا بخه شکل اُمومي، خو د پښتون د پاره په مکمل ډول په عدم تشدد عمل کول کښې ډېر وخت او سفر پاتې دی. دَ پښتنو قبيلو او خاندانونو تر مينځه په دښمنو او جنګونو به باچاخان هميشه زهير او غمجن وو. ددې دوا ړه څه وخت پورې خاموشه روان وو. بيا باچا خان دا خاموشي ماته کړه. دَ ځکانو ځي ته ځ در واړه ولوچې ګرانه مهانما!" نه پخپلو سترګو وينې چې دا ځمکه ډېره آباده او مړه ده. دلته هر څنګه ميوه دانه کيږي که دَ پښتنو تر مينځه دښمنۍ او ترېګنۍ ورکې شي نو دَ پښتونخوا دا وړوکې ټوټه دَ دې لره په څخ د جنت يوه برخه جوړيدې شي. زموږ بدقسمتي دا ده چې دا دښمنۍ او ترېګنۍ په موږ د يو آفت په څير را نازله شوې ده. تشدد د پښتون د مزاج او طبيعت هغه بنيادي خرابي ده چې دَ ده ټولې خوبۍ خوري. د دې تشدد او خپلو کښې دَ دښمنو په وجه د پښتنو اتحاد او اتفاق د موږو مړدو راسې تالا

چې د دور ترلوړه د پر مختګ لاره په ځنګه نیسي او دغه وجه ده چې موږ پاتې راغلي یو. باچا خان ورځندې ووې چې که چرې موږ د دې لعنت نه ځان خلاص کړو نو موږ کښې دومره قوت شته چې د ځمکې په مخ یو ښه کردار ادا کولې شو او لکه د آسمان دستورو ځلیدې شو؟

ګاندهي څه جواب ورنکړو او د سینه پورې غاړې په نورښې کتل. خان ورته خپل زړه راتش کړو. ده ورځندې ووې چې:

" دا ځما پوخ یقین دې چې څو پورې د پښتون او پښتونخوا تعلق دې، د عدم تشدد تحریک یوه تحفه ده چې الله تعالیٰ موږ ته را لیږلې ده. دا زه د خپلې تجربې په رڼا کښې وایم چې د عدم تشدد نه بغیر د پښتون د نجات بله لاره نشته.

ده ووې چې یو وخت وو چې موږ دومره بې زړه

انګرېز دَ متشدد پښتون په ځای د هغې پښتون نه زیات یرېږي چې په عدم تشدد ولاړ وي. هغوی وائي چې په عدم تشدد ولاړ پښتون د هغوی (فرنګي) د پاره زیات خطرناک دی."

ګاندهي په دې موقع باچا خان ته مشوره ورکړه چې خپلو رضاکارو ته تعمیري پروګرام ورکړه. ګاندهي د پښتونخوا د دورې په دوران کښې داسې نخه پروګرام ته ووليدلي ګاندهي ووې چې دې کښې شک نشته چې پښتون ته عدم تشدد په ذریعه د جنګیدو چل زده دی. اوس دوی ته دا هم ښودل په کار دي چې د عدم تشدد دا عمل دا زوند په نورو معاملو کښې روان کړي او دا یو ګران کار دی ولې چې امن کښې د جنګ جګړې خوند او رنګ نشته. ګاندهي ووې چې دَ جنګ د پاره انسان همیشه ځان مجبوره کړي او ځکه نن نړوله لړی د وير او فساد او جنګ جګړو او تباه کارو ته ډکه ده.

ګاندهي ووې چې خدائي خدمت ګارانو له په کار دي

خان د ګاندهي د خیبر سره اتفاق وکړو. ده ووې
چې په دې لړ کښې ما اُتمانزو کښې د یوه مرکز پرانستو
منصوبه تیاره کړې ده. ده ووې چې ځما اراده دا ده چې
زه یو مثالي کلي جوړ کړم.

د خدائي خدمتګارانو په مرکز کښې به موږ ځان
ته پخپلو پښو د اُدریدو، په خپل کور د پوره کیدو
هدف ټاکو: چې هغه کپړه په کار راوستې شي چې
موږ به یې په خپله جوړه کړو. یوا ځې هغه میوه دانه
او سبزیاني اُخوړې شي چې زموږ په خپله خاوره پیدا
کیږي. او په دغه ډول به دې مرکز کښې هغوی ته
دا زده کړه ورکولې شي چې د یو قام په څېر موږ
څنګه پخپل ځان باور کولې شو. باچا خان ووې چې د
یو باعزته او بډوند اولس سره دا خوند نه کوي
چې د نورو اُلسونو جوړ شیان او پیداوار استعمال
کړي.

ګاندهي ورته زړه په بېړه ووې چې خدائي خدمت

دګاندهي دا خبره خوښه شوه او باچا خان ته يې تجويز وړاندې کړه چې د خدايي خدمت ګارانو يوه ډله واردها ته راولېږه چې دوی هلته په ګډه د کارکونو ترسته ايډ، د صنعتي کار او بنيادي تعليم تر؟سه کړي.

باچاخان د ګاندهي جي په دې پېش کش ډېر خوشحاله شو. ګاندهي ورته بيا دوې چې څو پورې د ټول کاندنه په خپله زده نکړي. دې پروګرام کښې کاميابي مونده ګرانه ده.

سترګه د مغرب په لور د کوه سپين په څوکه ولاړه وو هوا ډېره تندېده سره يخه شوه او دوی دواړه د خپلې ډېرې په لور رادورېدل.

ګاندهي وايېې لنې ده نه دوې. چې دا کاني نه ده که يو کس خپله وسله ګوزار کړي. عدم تشدد داوچتې درجې يو اعلیٰ اصول دې دا د روح قوت دې. داسې لکه يو سړې ځان کښې خدايي قوت پيدا کړي. دوی د آلوچو په بڼو کښې د اوړو په ولو تندېده سره پورې

او د برکت سبب جوړېږي دې شي دوی په ټولو ګټې
د اُلوچو د باغ په يوه غاړه اُدریدل. ګاندهي د باچا
خان په لور وکتل چې ګوره ! که نه یواځې انسانی و
ګټې هم د عدم تشدد په ذریعه معاملې سمو ونه کړې
نو ستا د تشدد ټوله مسئله به هواره شي. دا ددې چې
د عدم تشدد بنیادي اُصول دا دي چې کوم یو شي،
کومه یوه خبره ستا په حق کې غوره وي هغه هم دا سې
د هر چا په حق کې غوره وي. ګاندهي ادوې چې زموږ
تعلقات د نورو سره هم بدلیدې شي که موږ ونه اُوایو
چې موږ خپل حفاظت پخپله کولې شو. تاسو چې زموږ
د تحفظ دپاره کوم پولس او فوځ ساتلې دي موږ ته
د دې ضرورت نشته.

څنګه چې تیاره په وادي خوریده ګاندهي او باچاخان
ساده خوراک وخوړ او چرته د ټکو غرونو ګټې پردت يو
لوې کلي ګټې څه وخت تیرولو په حقله یې خبرې اترې
کولې. باچاخان ورته او وې چې ګاندهي جي ! سوات به

کښې ووې چې هسې نه چې هم هلته چرې پاتې شې بیا به دِ خپل پېښور کار لښوي او نه به نه وي بیا به څه چل کیږي؟ باچا خان ورته په خندا ووې.

دا ددائره گاندهیان او ملگري د یو بل نه متاثره وو. باچا خان به د گاندهي احترام کولو او د ده مشورې نه به یې د قدر په نظر کتل هم داسې گاندهي د باچاخان احترام کولو. دا دائره د هندوستان د آزادۍ د تحریک سرښکران هم وو او دوائره ملگرې هم وو د سنجیده خبرو اترو او لویو لویو فیصلو نه علاوه به یې کله نه کله د یو بل سره ټوقې کولې. د یو بل په لیدو به خوشحالیدل او د یو بل نه په جدا کیدو به زهیر یدل.

په دویم نومبر گاندهي د پښتنو څوا د غیرتي خاورې نه قطبي هندوستان نه روانیدو نه تیار شو. ده پښتو کښې خدائي خدمتگارو نه ووې: " خدائې خدمتگارو په عدم تشدد عمل کولو سره کښې هغه حد پورې ښه پرمختګ کړی دی څومره پورې چې دوی به دې

کوبو میدان هم پرانخه کړي. بې حال ناسوچې څومره
پر مخنګ کړي دي دا د ستاینې وړ دي او ضرورت
د دې خبرې دي چې دا تجربه جاري آسانلې شي.
که الله ته منظوره وي د خدائي خدمتګارو دا تحریک
به کامیابي موي؟

د پښتونخوا په څنډه د نهیکسلا نه ګاندهي ریل
ګاډي کښې د واردها په لور روان شو. چې کله ګاډي
د پنجاب په سیمه ورګډ شو، ګاندهي د هغې ملګرې په
بایله چې دا ورسنو پښتونخوا کښې پرېښې وو آ لیکل.

"د خدائي خدمتګارو تحریک را روانو وخنونو کښې
کامیابي موي یا نه موي دا بیله خبره ده څومره
پورې چې د دې تنظیم د مشر تعلق دې، دا حقیقت
څه شک نلري چې هغه ځان په دښتیا سره الله تعالیٰ
ته سپارلې دې. د ده دا پخه عقیده ده چې الله تعالیٰ
ما ته د هر چا نه نږدې دی او دا هم وائي چې ځما تحریک
هله کامیابېدي شي که د الله تعالیٰ مرضي زمونږه ملګرې

ګانډهي اُلیکل چې: کله موږ په ټیکسلا جدا شول
زموږ په سترګو کښې اوښکې وې ما ته په کار دي چې
زرزر د پښتونخوا دوره کووم. باقي ټول هندوستان په
د ښتوني توګه په عدم تشدد عمل کولو کښې ناکامه کیدی
شي ولې دا قوي اُمید دې چې د پښتونخوا اُولس به
د اور په دې سیند پورې وتو کښې بریالی شي.

دا ځکه چې باچا خان یو داسې مشر دې چې پخپلو رضاکارو
ډیر ګران دې او د ده هره یوه خبره د ده د رضاکارو
د پاره د یوه داسې حکم اثر لري چې هغوی پرې ډیر په
خوشحالۍ عمل کوي. ټول هندوستان کښې بل داسې مشر نشته
چې هغه خپلو کسانو ته څه آوائي او هغه کارونه په هغه وخت
اوشي. دې د عدم تشدد په بابله تشې خبرې نه کوي د ده
روح او زړه په دې فلسفه او فکر لړلې دې پریږده چې
شکمن شک کوي. ماچې د پښتونخوا په سیمه په دې پنځو
هفتو کښې څه اُلیدل دې زه حیران کړې یم. که شک من
دا هر څه پخپلو سترګو اُویني نو د هغوی شکونه به داسې

## څوارلسم باب

# د بچاخان د جد وجهد نتيجه

(۱۹۳۹ء ـ ۱۹۴۷ء)

رسول الله صلی الله علیه و سلم ته چې مشکلات ور پیښ وو خو دې چرته مایوسه شوې نه ئو او اخر بریالي شو. دا مونږ ته د اُمید او مسلسل جد و جهد سبق راکوي دي. که چرې مونږ د خپلو مشکلاتو مقابله په صبر او استقلال سره اوکړو نو دا سې څه وجه نه ښکاري چې مونږ دې ناکامه شو. د آزادۍ د پاره جنګ کول یوه صحي او جائزه خبره ده او د غلامۍ زنځیرونه شلولو د پاره لاس خوځول د هر یو د ښتوني او عظیم کار دې"

د جرمني خلاف د جنګ اعلان وکړو او هم داسې نوي دلي کښې د برطانيې وائسرائې لارډ لِن لتګو هم د خپل هيواد په مرسته کښې د جرمني خلاف اعلانِ جنګ وکړو. نه ورسره چا مشوره وکړه. او نه څه صلاح، چې درې سوه مليونه هندوستانيان په دغه سحر د خوبه را پاڅيدل نو ورته معلومه شوه چې د نړۍ په بله غاړه دوی په جنګ اخته کړې شوي دي.

دوه هفتې وروستو د کانګريس ورکنګ کميټۍ اعلان وکړو چې دا د فاشسټ يرغل غندنه کوي خو کانګريس به په يو شرط د برطانيې د جنګ په کوششونو کښې مرسته کوي" يو آزاد جمهوري هندوستان به ډيرې په خوشحالۍ سره د باهمي دفاع په غرض د جرمني د يرغل خلاف د نورو آزادو هيوادونو ملګرتيا وکړي د ايمپائر د پاره د جنګيدو نه آګاهو په کار ده چې

چې جنګ ختم شوې نه وي. چې کله جنګ اودریږي نو د بهارت د مستقبل په حقله د خبرو اترو د پاره به ښه وخت وي. اوس د ایمپائر د دفاع کولو په غرض د جرمني خلاف زمونږ سره جنګ کښې شریک شي.

شپږ ورځې پس د کانګریس ورکنګ کمیټۍ فیصله وکړه چې د فرنګي به هغه وخت پورې مرسته نشي کولې څو پورې چې د بهارت په حقله دوی خپله اراده او منصوبه ښکاره او واضحه نکړي.

د کانګریس ورکنګ کمیټۍ د کانګریس ټولو وزارتونو او پښتونخوا کښې ډاکټر خان صیب ته هدایت ورکړو چې د جنګ خلاف د احتجاج په توګه د استعفی ورکړي شي. د کانګریس او راج ترمینځه د اوو کالو د امن نه پس یو ځل بیا د جنګ تیاری کولې شوې.

په بل لوري د بهارت په ټولو او باندو کښې او هره لویه صوبه کښې د یو بل جنګ ... د نه ختمیدونکي

کلونو د یو بل سره امن کښې پاتې شوې وې خو دوی اوس د فرنګي د" تقسیم کړه او حکومت کوه" د پالیسۍ د اثر لاندې راغلي وو.

کال ۱۸۵۹ء کښې د بمبعي ګورنر ماؤنټ سټورټ الفنسټن خپلو افسرانو ته دا هدایت ورکړې وو چې د رومیانو په دې خبره عمل کوې" چې که تاسو په نورو اُلسونو حکومت او راج کول غواړئ نو دغه اُلسونه خپلو کښې تقسیم کړئ" دې کښې څه شک نشته چې د هندوانو او مسلمانانو رسم او رواجونو کښې فرق وو ولې د پنځو سوؤ کلونو راسې د دوی تاریخ یو وو. څنګه دا سې صوبو لکه بنګال کښې د دوی لباس او ژبه هم یوه وه او د یو نابلده کس د پاره دوی کښې څه فرق کول ممکن نه وو خو د فرنګي واکمن د پاره د هندو او مسلمانانو ترنځونو غټه کمزوري د دوی ترمینځه دغه اختلافات وو.

مسلم لیګ ۱۹۰۵ء کښې وجود کښې راغلي وو او دَ

دا د یو بل رقیبان شول ـــ د دوی ترمینځه فرق دا ؤو چې کانګریس آزادي غوښته او د فرنګي دَ مرستې ملکرتیا نه کولو په پالیسۍ روان ؤو ـ مسلم لیګ په بل لوري ایمپائر کښې دننه دَ ډومینین درجه غوښته او د تاج او د راج د ملګرتیا په پالیسۍ روان وو ـــ دا هغه وخت ؤو چې خدائي خدمتګار هغه یواځنې مسلمان تنظیم وو چې د کال ۱۹۲۰ء نه پس بیله په ډاګه د فرنګي د راج او واک خلاف ؤو.

د نولس سوه دیرشمې لس کلیزه آخره کښې آزادي مومندل دَ یو حقیقت په ډول ښکاره شو. دَ یو آزاد مسلمان هیواد د پاره تحریک زور او قوّت حاصل کړو. د کال ۱۹۴۰ء په مارچ کښې مسلم لیګ د لاهور په اجلاس کښې د یو آزاد او خپلواکه مسلمان ریاست غوښتنه اُوکړه.

د لیګ صدر محمد علی جناح اعلان وکړو چې مسلمان

چرته چې مسلمان ګڼ شمیر کښې دي. دې کښې په د بنګال، کشمیر، آسام، پنجاب، سنده، بلوچستان او د پښتونخوا صوبې شاملې وي. لیګ خان او دَ ده خدائي خدمتګارانو ته دَ هندوانو خلاف جنګ کښې د لاس کولو بلنه ورکړه.

خان ووې چې داسې نشي کیدې ځکه چې دمسلمان دښمن هندو نه دې. فرنګي د مسلمان دښمن دې ده لیګ ته ووې چې کله فرنګي ورک شي او دا وطن آزاد شي نو مسلمان او هندو متحده هندوستان کښې یو ځائې پاتې کیدې شي. دا دواړه اُلسونه وړاندې هم یو ځائې پاتې شوي دي او په پیړو پیړو د یو بل ګاونډي کښې پاتې دي. ده لیګ ته بلنه ورکړه چې دَ فرنګي خلاف جنګ کښې د کانګریس سره ملګرتیا وکړه.

لیګ د باچا خان دا پیش کش رد کړو چې لیګ د داسې کانګریس مرستیال نشي جوړې دې چې دَ هندوانو د غلبې لاندې وي. مسلم لیګ د باچا خان

۱۹۴۰ء کښې جرمني په فرانس قابض شو. ورپسې د انګلستان وار وُو د کانګرېس ورکنګ کمېټۍ په دې خبره بحث وکړو چې د حملې په صورت کښې به بهارت خپله دفاع په کوم ډول کوي ؟ آیا دا به خپله دفاع د عدم تشدد په ذریعه کوي او که د تشدد په ذریعه.

ګاندهي او باچا خان دا دلیل ورکړو چې دا هلو د سره څه مسئله نه ده ځکه چې "عدم تشدد" داسې څه حکمت عملي نه ده چې کله ضرورت وي. سړي دِ ترنه لاس په سر شي. دا دَ ژوند یوه لاره ده یو اخلاق دې. دا دَ ژوند په ټولو اړخونو لاګو دې اَو دَ دې نه د هر یو ضرورت په وخت کار اخستل په کار دي. که بهارت د خپلې آزادۍ حفاظت د وسلې په ذریعه کوي نو دا خپله آزادي څنګه د عدم تشدد په ذریعه ګټلې شي د تشدد او د عدم تشدد په سوال کمېټۍ د اختلافاتو ښکار شوه پنځولیشت کاله کښې په رومبنې وار دَ آزادۍ د تحریک نو مسالې

ولې د دې په ذریعه د جګړې دښمن لاره نیول
ممکن نشي کیدې ورکنګ کمیټۍ دا غوښتن قرار داد
منظور کړو چې "ځ دې د پاره د ګاندهي جي په
لاره تګ ګران دې"

ګاندهي خپله لاره جدا کړه. ده کانګریس نه ووې
چې زه به ستاسو هغه وخت ملګرتیا کوم کله چې
تاسو به عدم تشدد عمل کوې د عدم تشدد په بابله
باچا خان سخته رویه اختیار کړه. ده ووې چې کـه
چرې کانګریس په اصولي ډول هم د عدم تشدد ځ
لارې نه بې لارې شو نو دې به د کانګریس مرستیال
نه وي. ځ باچا خان رویه ځکه سخته وه چې که دې
یو ایچ هم د دغې لارې اخوا دېخوا شو نو پښتونخوا
به لمبه شي. هلته به د هندو او مسلمان ترمېنځه
ناؤ نویخوالې د وینو دریاب شي.

د باچا خان فیصله ګرندې او خبره لنډه وه. ده

دا زمونږ په ذوند خوړا دي او دا يو پائيداره اومستقل قدر دي دہ ووې چې خدائي خدمتګارانو ته هغه څه کيدل په کار دي څه چې دَ دوی دَ قوم ته بښکاره دہ د الله تعالیٰ او دَ اِنسانيت خدمتګاران دا خپل سرونه خو ودکوي ولې د بل سر نه پريکوي۔

د کال ۱۹۴۰ء جولائي کښې کانګريس بيا دا پيش کش وکړو چې مونږ د انګريز واکمن سره د جرمني خلاف جنګ کولو ته تيار يو، هندوستانيان به فوځ کښې شامل شي او اتحاديان به مضبوته کړي که چرې مونږ ته خود اختياره حکومت راکړې شي۔

چرچل ووې چې داسې نه شي کيدې۔ چرچل وزير اعظم وو۔ دہ ووې چې زۂ به دې غرض د انګلستان دَ باچا اول وزير نه يم جوړ شوې چې د ايمپائر په ټريدو لاس پورې کړم۔ دہ تير شوي وخت ته کتل خو دا خبره او دا حقيقت ښه جوت وو چې دَ

ګاندهي په لاره روان شو. دې او باچا خان بیا دَ ورکنګ کمیټۍ غړي جوړ شول کمیټۍ ګاندهي ته ووې چې یوه بله سنیاګره کېښې د اُولس لاره سمه کړه. ګاندهي ورته ووې چې زهٔ به په دې خبره غور وکړم

خان د سیاست نه ځان د ډې ته آسانلو. دهٔ خپل وخت خپل اُولس د ناداری او ناچارۍ د تیارونه را ایستلو ته ورکړو. دې به همیشه د پښتنو په ناداری غمژن وو. دا دَ دهٔ ارمان وُو چې پښتون پخپله خاوره نېیازه او آباد شي او د مفلسۍ دَ زنځیرونو نه [illegible] سپکه شي.

دهٔ د ګاندهي سره آشرم کېښې د تعمیري پروګرام په بابله یو فکر جوړ کړې وُو. دَ دې تعمیري پروګرام مقصد دا وُو چې د یو کلي معیشت په خپلو خپو اُدرَوي او د پښتون د مزاج نه جنګ، تشدد اُباسي.

دهٔ دَ کلي د خدمت د پاره د اُتمانزو سره نزدې یو مرکز پرانستو. دهٔ دلته د ځان د پاره یو وړوکې کچه څپر جوړ کړو او [illegible]

دَ به د ښځو د حقونو او د سړو سره دَ دوی دَ اوږه په اوږه کار کولو د پاره خپل غږ اوچتولو. دَ کوهاټ سره نژدې د ښځو یوې جلسې ته د تقریر کولو په وخت دهٔ ووې چې:

"تاسو ته به دې هیواد کښې د خپلو ورونو سره سم حقونه حاصل وي. مونږ د یو ګاډي د دوو پایو په شان یُو. او چې څو پورې مونږ د یو بل سره خواه په خواه روان نه یو، زمونږ دَ دې ګاډي حرکت او پرمختګ ګران دې"

خان د کیمپونو تګولو هغتې شروع کړې دا دَ دهٔ خپله طریقه وه او مقصد یې دا وُو چې خدائي خدمت ګارانو ته دَ تعمیري پروګرام زده کړه ورکړي وي پروګرام کښې د کلي په سطح دَ یو بل سره کار کښې لاس امداد کول وُو. د کلي د کوڅو چنو صفائي، خپلې کشالې د خبرو اترو په ذریعه هوارَول، د یو بل خلاف د تشدد کولو نه ځنګ کول او خپلو ماشومانو، جینکو او هلکانو

" سهار وختي يعني يخنه كښې د چايو څښلو نه پس
د دوو گهنټو د پاره د كلي د صفائي پروگرام وو.
بيا پښتون ځلمي ماته دوې چې زه په كومه ډله كښې
شامل يم ___ دې د تنهائي صفائي هم وكړه. باقي ورځ
كښې په كهډيه د كپړې جوړولو كار وكړې شو. پرېښو نه
اشول د بيرغ اچتولو د سنورې وشوې، غونډې
وشوې - او دواړه وخته، غرمه او ماښام د كيمپ
خلكو په شريكه ساده خوراك وخوړو، دې كيمپ كښې
د ښلودو سوو خدائي خدمتگارو نه علاوه يو سل ميلمانه
هم وو چې د بلوچستان، كشمير او پنجاب نه راغلي وو
بيا د پښتو دا مشر هغه خيمې ته راغلو چې ته چې
مونږ ټول جمع شوي وو - چې كله دې راننوتو چپه
چپيا خوره شوه او چې كله ده خبرې شورو كړې
دا خاموشي نوره زوره شوه او ډير په پام او خاموشۍ
سره دې واوريدې شو. كله كله به د ده په خبره
به يو ځائې او يو آواز كښې چغې جوړې شوې "

خوښي، مستي، جوش او خروش او د تودند حرارت غالب وُو. دلته دَ ډولونو او سُرنو آوازن خور وُو ـــــ کیمپ کښې د ننه او بهر که میلې کیفیّت وُو.

د کیمپ د دوديې نه پس ماري بر اُتمانزو کښې دَ جینکو یو سکول ته لاړه.

د جینکو سکول د پښتونخوا په سیمه عجیبه غونډې ښکاریده. بیا خان دې ته بلنه ورکړه چې اُتمانزو کښې ځما په کور کښې یو څو ورځې تیرې کړه دې که باچا خان په لوئې او پراخه کور کښې څو ورځې تیرې کړې او په پټو، باغونو او د غرونو ننداره یې اُکړه او دَ باچا خان د ځوئې ولي خان سره به یې خبرې اترې کولې دا لیکي چې" ما د ولي نه تپوس وکړو چې تا ته دیځواو ورځو څه خبرې یادې دي"

ده ووې چې زهٔ دوئمې لس کلیزه کښې ډیر وړوکې وُوم او څه را ته یاد نه دي خو کال ۱۹۳۱ء کښې حالت ډیر بد وُو. ده ته یاد ؤو چې د اُتمانزو نه فوځ ځنګه

محاصرې نتیجه دا شوه چې فصلونو او څاروو ته نقصان ورسیدو او په بل لور د کلي کوڅې د ګند نه ډ کې شوې ــ دا ووې چې خلک به سخت وهلې شول ـ زۀ په خپله د فرنګ نوځیانو دومره اوهلم چې بې هوشه شوم ـ

ماریې بر وائي چې بل سحر باچا خان د کوډ د نوډ بندیانو نه وختي را پاڅیدلې وُو، دې د ملازمانو سره ټګیا وُو کار هې کولو، کوډ کښې د ننه او بهر هې جارو اوهله ـ او بیا باغ کښې د کار کولو نه آکاهو خان د یوې ګهنټې د پاره په کهډوه ګار وکړو ـ خان بماته ووې چې زۀ بې کاره ننشم پاتې کیدې ـ ټوله ورځ خلک راتلل د کیمپ په بابله به بې دا سره خبرې کولې او د خلکو سره به بې داسې ګپ لګولو لکه دا ټول د دۀ د وړوکوالې ملګرې وي ـ

مانیام د باچا خان څوئې غني خان څا ملګرې شو

هم هغه چاسره په جنګ وُو چې دَ دهٔ په خیال کښې
بد معاش وُو"

دَ غني دَ دې خبرې نه دا اندازه لګول ګرانه
نه ده چې د خان په ژوند کښې څومره لوې بدلون
راغلې وو. دَ خان عمر ددرویشت کاله وُو چې کله غني
پیدا شو. مونږ د مهاتما ګاندهي په ژوند کښې هم دومره
تاوُ تریخوالې ونیو. کله چې دَ دهٔ عمر د شلو او څلویښتو
کالو په مینځ مینځ کښې وُو. وائي چې ګاندهي به دې
عمر کښې د خپلې ښځې سره تل اخته وُو او په کور
کښې به بې شور شغب او ډېر غریب جوړ کړې وُو
ګاندهي په دغه عمر کښې ښه ګرم مزاجه وُو خان
خپله هم دا مني " چې کله زهٔ هلک وم زه ډېر
زیات ګرم مزاجه وم. د پښتنو ګرمه او نو ده وینه
څما رګونو کښې اوریده د راوریده ماچې دَ الله دَ رسول
صلی الله علیه وسلم دَ ژوند مطالعه وکړه چې سختو
حالاتو کښې هغه څنګه پرسکونه پاتې شوې دې. دَ

وُو۔ څوک چې دَ هندوستان دَ اُلسونو په بابله څه لږ ډېر معلومات لري هغوى پوه دي چې پښتون څوک دې. او څنګه مزاج لري. مونږ دا اندازه کولې شو چې خان ښه په شعوري ډول خپل مزاج او طبيعت د عدم تشدد په لور واړولو. او بيا يې ټول عمر کلک پاتې شو.

د پښتنو سره په څنګ کار کولو دوران کښې د خان په ډوند کښې په زرګونو داسې وړې وړې تبديلي راغلي وي ۔ دَ اُتمانزو دَ مغرور مرتضى خان په څېر کسان، چې د چا په بابله غني خان خپل کتاب "دي پټهانز" کښې ليکلي دي' د خدائي خدمت ګارانو په تنظيم کښې د جيل نيږدلو نه پس کماندان جوړ شو. دې مغرور يو عطا خان وژلې وُو دهٔ کښې دَ باچا خان په څېر پوخ بدلون نه وُو راغلې. دَ ده د پارهٔ په يو وخت يو بزرګ او خان جوړېدل ګران وُو ۔ په هر حال دا متشدد پښتون چې داکو

غني د مرتضی نه تپوس وکړو چې یو ځواني مفرور د عدم تشدد په لاره څنګه روانیدې شي؟ ده ورته ووې د روحاني قوت په ذریعه داسې کیدې شي دا هغه قوت دې چې د انسان مخفي قوتونو نه تشکل او توان ورکوي. ده غني ته ووې. چې دغه څلوردو کالو کښې زه یو ورکې غونډې بزرګ قوم. ما دې دوران کښې دا کوشش وکړو چې زه د خپلو ارمانونو او خواهشونو په ځای د خپلو خوبونو مطابق ژوند تیرکړم دا یو لوئې کار وو دا یوه معجزه وه. ما د غوره اُمیدونو د پاره غوره موقعې نظر انداز کړې. ما هغه ښکلې ښکلې جینکو ته څه اُ نه وئیل چا چه په ما باور او اعتماد وکړو. مرتضی په غیر ارادې توګه د عدم تشدد د قوت څرګندونه کوي — عدم تشدد دَ انسان سره دَ انسان د مینې او محبت عملي مظاهره ده.

او ته هغه څوک نشې ژوبل کولې. څوک چې په تا باور کوي، په تا اعتبار کوي — دا دَ هیبت ډک مفرور

تالاش او لتهون کښې جيل ته ورد ننه شوي وُو.

باچا خان ته په امن ناکه ښوکه د کار کولو ډېر وخت حاصل نه شو. د کال ۱۹۴۱ء دسمبر کښې جاپان په پرل هاربر حمله وکړه او د سویل مشرق ایشیا په لوډېږ پر جنګ شورو کړو. وړاندې ملایا راپوليټه او وړلېښي سنګاپور را دربل شو او بيا ۱۹۴۲ء مارچ کښې رنګون هم جاپان ته مخه ورکړه. د دې مطلب دا وُو چې جاپان د هندوستان تر پولې را رسيدلي وُو.

د انګلستان حکومت يو وارِ بيا د جنګ دپاره د کانګريس د مرستې تر لاسه کولو کوشش وکړو خو پدې باېله څه روغه را نغله کانګريس ته د اول جنګ عظيم نه پس دَ هندوستان سره د فرنګي رويه ياده وه او په دا وجه يې غوښتل چې هندوستان ته ځنه حقونه په سمدستي ښوکه ورکړې شي ولې چر چل دې خبرې د پاره تيار نه وُو چې په هندوستان دِ

قانون یا د یوې کشالې په بابله خپل خیګان او احتجاج
ښرګندوَل وُو. ګاندهي دا فیصله کړې وه چې د
دې تحریک مقصد به یک نیو او بنه واضحه وي.
هغه دا چې انګریز نه اُوښلې ښې" چې بهارت نوښې
کړه؟

انګریز دَ دې تحریک په مقصد پوهه شو. کال ۱۹۴۲ء کښې
په ۹. اګست ګاندهي او دَ کانګریس د ورکنګ کمیټۍ ټول
غړي اُنیولې شول. دَ دوی نه علاوه ټول ملک کښې
د کانګریس په سلونو مشران ګرفتار کړې شول.

د پښتونخوا په سیمه خدائي خدمتګاران د کانګریس
بیرغ په لاس په سرکاري دفترو او عدالتونو ور غلل
دوی د سرکار خلاف نارې وهلې. دا سې نارې وهل
د فرنتیر کرائمز ریګولیشن لاندې یو جرم وُو. حکومت
ټول عمارتونه اُنیول او چې چا خدائي خدمتګار به
عمارت نه د ننوتو کوشش کولو هغه وهلې او ټکولې
شول. ډاکټر خان صیب چې دې کاله اَکا هوېې

حکم لاندې وُو. نه هلته دَ فرنګی د جنګ د کوششونو خلاف یو تقریر کول غوښتل.

ډاکټر خان به هم ځان ګرفتاریه نه وړاندې کولو نو چې کله به هم دې یو کلي ته لاړو، سرکار به دې هلته ګیر کړو، موټر کښې به یې راچولو او پېښور ته به یې را ورسولو او خوشې به یې کړو. دې په دې طریقه تنګ شو او د چارسدې نه د پنځوسو رضاکارو سره مردان کښې په یو عدالت د چاپې وهلو د پاره روان شو. د دیه هلته د پولس سره مقابله شول. د دیه څلور کسې لاسونه کنجې کړل. او سم په مخه روان پاتې شول. پولس په کوټکو د دیه وهل شورو کړل. دې وهلو کښې د خان صیب دوه هډوکي مات شول. دې ګرفتار کړې شو او دَ هرې پور جیل نه اُلیږلې شو. دا هغه جیل دې چرته به چې هغه قیدیان لیږلې شول چې د سرکار په نظر کښې به د سختې سزا مستحق ګرځیدلي وو.

د کال نر آخره پورې ټیپیته ذره هندوستانیان

جنگ يرغ او څه دَ جاپان يرغ وه چې حکومت او ښکي ښهيونكي گيم، كونكو چلولو او د كولو چلولو نه كار اختتل شورو كړل. مقصد ېې دا وُو چې د هندوستانيانو حوصلې ماتې كړې شي. او دَ دوی مظاهرې او احتجاجونه خاموشه كړې شي. گاندهي او د كانگريس ټول قيادت په جيل كښې وُو. په ټول هندوستان كښې د تشدد اُور څور شو. په تهانو، ډاكخانو، دَ ريل په سټېشنونو حملې شورو شوې. د فرنگي د واک او اختيار هره يوه نښه تباه كړې شوه. دَ تار او ټېلي فون تارونه اُشلولې شول.

انگلستان دَ دې كاروايو جواب په قوت سره وركړو. چرچل دا خبره منلې وه چې دا وخت غټه شميره كښې سپين پوستې فوځ د هندوستان په خاوره پروت وو.

دا يوه معجزه وه چې پښتونخوا داسې حالاتو كښې خاموشه پاتې شوه. يكمنگ او چا ېې جارې وې ولې دَ تشدد او ورانكارۍ پېښې نه وې. په دې موقع څنه رضاكارو د باچا خان نه تپوس وكړو. چې مونږ د مواصلاتو

خوچې کله داسې وکړې نو بیا به ځانو کښې حاضر شي او هلته به د خپل ورانۍ اقرار هم وکړي. ده ویل چې داسې کولو سره به د رضاکارو اخلاقي جرأت نور مضبوت شي دوي دَ خپل باچا په نه ماتیدونکي عدم تشدد سرونه اُخوزول.

د جنګ باقي ورځو کښې د هندوستان سیاسی مشران جیلونو کښې اُسانلې شول او د فرنګي زور ظلم د آزادي تحریک قابو کښې کړو. چې د جنګ خاتمه را نزدې شوه د فرنګي رویې کښې نرمې راغله. د اُولس جذبات دَ آزادي په حق کښې وُو د کال ۱۹۴۵ء ګرمو پورې ټول سیاسی قیدیان را خوشي کړې شوي وُو. د لیبر پارټۍ حکومت چې هندوستان ته یې د آزادي ورکولو وعده کړې وه منتخب شوې وو او چرچل دَ وزیرِ اعظم په حېث ریټائر شوې وُو. د کال ۱۹۴۵ء مارچ کښې ډاکټر خان صیب یو وارِ بیا هغه وخت د پښتونخوا وزیر اعلیٰ جوړ شوي وُو کله چې د لیګ د وزارت خلاف

نه به زر خود اختياره حکومت ورکړي شي" په عملي
توګه آزادي ګټلي شوي وه خو دا سوال را پيدا شوې
ؤو چې چا ته اِقتدار منتقل کړې شي ؟ دا يو علمي
سوال نه ؤو ولې چې کانګريس او مسلم ليګ يو مخلوط
حکومت جوړ ولو کښې پاتې راغلي ؤو - د مسلم ليګ
غوښتنه دا وه چې دا دَ هندوستان دَ مسلمانانو
يواځنۍ نمائنده تنظيم وګڼلې شي - خو کانګريس دا خبره
نه منله - کانګريس کښې د مسلمانانو شمير ډيرې فيصده
ؤو - کانګريس د مسلمانانو او هندوانو يو شريک هيواد
يو متحده ملک غوښتو - مسلم ليګ بيخي يو مسلمان ملک
غوښتو او داسې مخلوط حکومت ته تيار نه ؤو چې
چرته د فرنګي ځائې هندو اُنيسي -

کله چې دَ ليګ دَ تسلّيت نه بغير يو عبوري حکومت
جوړ کړې شو نو ليګ د دې حکومت د بائيکاټ کولو
غږ وکړو او د احتجاج په توګه يې د کال ۱۹۴۶ اُشپاړسم
اګست د راست اقدام" ورځ اُټاکله - په دې ورځ قطبي

شول اُولس بې وسه وُو. دَ ځلورو ورځو د فسادونو نه پس بنارس غلې شو.

د نمرختيز بنګال نواکلي بنارس کښې مسلمانانو خپل بدل واخستو. هندوان اُوهلې شول، اُوژلې شول او په زبردستۍ مسلمانان کړې شول. ګاندهي دا ټول تشدد په خپلو سترګو اُوليدو. دا وخت دَ ده عمر شپږ اويا کاله وُو او په سنه هم ناروغه وُو خو ذې يو غلې تماشګيس نشو پاتې کيدې. ده نواکلي ته د تلو اعلان وکړو. د کانګرليس مشرانو ده ته هلته دَ نه تلو مشوره ورکړه ده ورته ووې چې زۀ دومره پوه يم چې خو پورې زۀ هلته لاړ نشم زۀ به بې آرامه وُوم.

د ګاندهي سره هيڅ منصوبه او پروګرام نه وُو. دې دَ نواکلي په انکار انکارس بنار کښې يغيې دَ څه حفاظت ودنوتو. دَ دۀ په سينه کښې د مسلمان او هندو دپاره د مينې او محبّت نه سيوا هيڅ نه وُو. ده اعلان وکړو چې زۀ به هغه وخت پورې دلته موجود وُوم څو پورې

د فسادونو په دې وخت کښې اوس دَ هندوانو د بدل
اخستو نمبر دُو. بهار کښې هندوانو په مسلمانانو داسې حمله
وکړه چې بیخي نیست و نابودي کړل. ګاندهي د نوا کلي
نه باچا خان ته پیغام کښې ووې چې بهار ته ځان اُورسوه
داسې د فسادونو په نود تنور کښې ګاندهي او باچا خان
د هندوستان یوائځني سیاسي مشران دُو. چې دَ اَمن
قائمولو د پاره یې خپل ژوند په خطره کښې واچولو
او دَ اَمن مشال یې بل اُساتلو.

د ګاندهي په ځیر د باچا خان سره هم د مینې محبّت
او عدم تشدد وسله وه. دا خاموشه دروند او باوقاره
انسان یو رینتونې ملنګ او پختون نقیر او د غرونو
نه دنګ انسان د لمبو په دې طوفان ورننوتو. دهٔ دَ
هغه ځایه ګاندهي ته اُلیکل چې" ستا دا خبره صحي
ده چې زمونږ عدم تشدد آزمائښت کښې کیږ دې"

دَ ندګونو په شمیر کښې پولیس او د فوځ سپایان چې

میلمه وو. هغوی به چې څه خوړل هغه به دوی خوړل هن دا چې د هغوی سره به عبادت کښې هم شریکیدو ماذیګر کښې به یو څو هندوان دَ دوی نه ګیر چاپیره ناست وو. رو رو دوی ته دَ مسلمانانو رانګ هم شورو شو. دوی به دوی ته هم یو مذهب کښې د الله دَ وحدانیّت خبرې کولې. دوی به وئیل چې الله تعالیٰ د ټولو یو دې. دَ چا د پاره راما دې او د چا د پاره رحیم.

مارچ پورې نواکلي کښې اَمن قائم شوې وُو. هغه هندوان چې دَ مسلمانانو د برې تبدیلي وُو. هغوی په اَمن او سلامتیا خپلو کورونو او علاقو ته راستون شول.

دَ بهار نقشه د نواکلي نه څه بدله نه وه. دلته هم ژوند سپیره شوې وو، تباهي او بربادي خوره وه. هر سړې په ویرکې وُو. سرو مال غیر محفوظ وُو.

دلته باچا خان ځادر په آبره کوڅه په کوڅه ګرځیدو

د هندوانو دَ زور او ظلم د لاسه مسلمانان د خپلو کورونو نه تښتیدلي وُو او هر څه ئونه کودونو کښې پاتې وُو. دوی دومره یریدلي وو چې خپلو کورونو او علاقو ته والپس کیدو ته تیار نه وو. حالت دا وُو چې د مسلمان حکومت افسرانو هم دغه سیمو ته د تلو جرأت نشوکولې نو به ستاسو سره څُم او ناسو به خپلو کورونو او علاقو ته رسوَوم؟ باچا خان د دې زیلي نسوي اُولس سره وعده وکړه او هم دې را وړاندې شو او دا خلک بې تباه شوُو کلو ته والپس اُرسول

چې نوا کلي کښې اَمن قائم شو، باچا خان ګانډهي ته د بهار د راتلو بلنه ورکړه. دوی په پټنه کښې دیره شول او هر سحر به یو ضعیف موټر کښې وتل او دبهار د کلو دوره بې کوله ـ ګاندهي په سته نادوغه وُو او په سپینه کښې هم پروت وو. چرته چې به دوی اُدریدل ګاندهي به د هندوانو نه دا قول او لوظ اخستو چې دوی به بیا د مسلمانانو روزنو او خوښدو خلاف لاس نه اُختوي.

میرېنې او بادر اُولس دي. دا په زړهٔ او تن مضبوت دي. تاسو هم دَ دغه اُولس په لاره روان ئښئ او دَ هغوئ د عدم تشدد مرامه خپله کړئ.

دَ امن تاثمولو دې عمل کښې يو وارِ د عبادت په يوه غونډه کښې د قرآن مجيد په تلاوت يو هندو اعتراض وکړو گاندهي پرې ډېر خپه شو او ورته ېې اوئيل چې داغيې معقول ليونتوب د هندو ازم څه خدمت نه شي کولې دهٔ ورته ووې " چې گورې نا څا سره دا باچا خان دې. دې يو پښتون دې يو مسلمان دې او د الله يو خدمت گار دې دَ دهٔ د وينې هره يوه قطره مسلمانه دهٔ، د دهٔ د بدن د غوښې يو يو اينچ مسلمان دې. نه دومره پته ستړکې يې چې دَ داسې لوئ انسان د پاره هم ستا په زړهٔ کښې څه احترام او لحاظ نشته" ؟

هندوستان يو دوئ او پراخه وطن ؤو گاندهيان دوه وو او ظاهره خبره ده چې دا دواړهٔ هر ځائې ته نشو رسيدې. پنجاب کښې هندوانو او مسلمانانو سرنېرو په يو

دې سرخپوښو ښښو د هندوانو او سکهانو حفاظت وکړ
او ښار کښې بېې امن بحال اسانلو. خو فرقه ايز
فسادونه جاري پاتې شول. چې د آزادۍ موندلو
ورځې را نږدې کيدې، هندوستان د خانه جنګۍ په
لور کوزيده. د ډېر دباؤ لاندې آخر کانګريس د مسلم
ليګ دا غوښتنه اُومنله چې د مسلمانانو د پاره دې ځان
ته يو هيواد جوړ کړې شي.

په دوه ويشتم مارچ لارډ ماؤنټ بيټن دلی ته
را اُرسيده. دا هندوستان کښې د انګلستان شلم او
آخري وائسرائې وو. ده ته دا کار سپارلې شوې وو.
چې نندۍ سره او په منظم ډول هندوستان ته اقتدار
منتقل کړه.

د ده د راتګ نه يو کال اګاهو د انګلستان د کابينې
مشن د يو ښه تحقيق نه پس د هندوستان د نه
تقسيمولو سفارش کړې وو خو نښد د لکه د ځنګل د

د کامیابۍ د پاره دا ضروري ده چې بهارت دوه ریاستونو کښې اوویشلې شي- یو د هندوانو او بل د مسلمانانو - ده یوه منصوبه تیاره کړه او د مسلم لیګ د تجویزونو مطابق دې منصوبه کښې تفصیلات شامل کړې شول___ په اصولي توګه دا خبره منلې شوې وه- چې هغه علاقې او صوبې چرته چې د مسلمانانو شمیر زیات دےهغه به د پاکستان برخه وي او چې چرته هندوان شمیر کښې سیوا دي هغه به د هندوستان برخه وي-

د ګاندهي په نظرکښې د هندوستان ویش یوه سنګینه غلطي وه- د خانه جنګۍ نه هم یو بدتر کار ؤ- د هندوستان د شړلو د پاره تشدد یو داسې خوفناک عمل ؤ لکه یو جنګ او د تشدد نتیجه د دې نه سیوا هیڅ نشي کیدې چې هندو او مسلمان دې یو بل داسې ژوبل کړي چې هغو ټول عمر د هیریدو جوګه نه شي- ګاندهي د ماؤنټ بیټن د منصوبې په جواب کښې یوه منصوبه تیاره کړه او مسلم لیګ ته یې بلنه ورکړه چې دې د مسلمانانو د

کال ۱۹۴۷ء کښې په ۳۱، مارچ کانګریس په اصولي توګه د ماونټ بیټن منصوبه منظوره کړه. هندوستان د تقسیم کړې شي.

باچا خان او ګاندهي په دې اعتراض وکړو. د ګاندهي دلیل دا وو چې کله فرنګي د هندوستان نه اوځي نو هندوان او مسلمانان به متحده بهارت کښې خپل اختلافات هوار کړي. د هٔ وئیل چې د هندوستان د وېش سره به فرقه ایز تشدد ختم نه شي. د وېش سره به تشدد نور سیوا شي ځکه چې په لکونو هندوان به پاکستان کښې پاتې شي او هم داسې به هندوستان کښې په کروړونو مسلمانان پاتې شي.

د دهٔ دا اندازه صحي وه کله چې د ۱۹۴۷ء اګست کښې تقسیم په عمل کښې راغلو، د پاکستان نه هندوان د هندوستان په لور راغلل. دوئ هلته خپل هرڅه پرېښول او هم داسې د هندوستان نه د پاکستان د پاره مسلمانانو

او پنجاب په مینځ نیم کړې شول او چې د ویش په عمل کښې کوم تشدد اُشو او څومره یره خوره شوه دَ هغې اثرات نن ورځ پورې موجود دي.

د باچا خان په نظر کښې د هندوستان د تقسیم مقصد دا وُو چې هغه یواځې پرېښودې شو. دا به د پښتونخوا صوبه مسلم لیگ ته اُسپارې. چې د خدائي خدمتګارو سره بې لس کاله جنګ کړې وُو. باچا خان او د هغه ملګرې اکثر د ګاندهي او کانګرس طرفدارۀ او مرستیال پاتې شوې وُو. او دَ مسلم لیگ سره بې اختلافات وُو د تقسیم مقصد دمسلم لیگ د پارۀ دَ دې نه سیوا څه کیدلۀ شو چې د باچا خان نه دې انتقام واخلې. دا یوه صحي خبره ده چې مسلم لیگ د باچا خان دَ اثر او حیثیت نه یرېدلې وُو.

ګاندهي باچا خان ته دا یقین ورکړو چې زۀ او هندوستان به تاسره خیل تعلق نه پرېکوُو. دۀ باچا

به په خپل داسې مرګ ډېر خوشحاله شم که پاکستان جوړ شو نو ځا ځائې او اسنوګنه به پاکستان کښې وي".

ګاندهي وروستو دا خبرهٔ اُمنله چې د باچا خان خفګان او دلګيري ته ما نشو کتې د هغه په صدمه ځا زړهٔ ټوټې ټوټې بدلو خو که چرې ځما د سترګو نه اوښکې روانې شوې نو دا به د بزدلۍ کارُو او د هغه غيي معمولي پښتون حوصله به ماته شوې وه؟ باچا خان نوي دلي کښې خپلو دوستانو ته ووې چې زهٔ داسې وينم چې پښتانه د هندوانو او مسلمانانو دواړو په نظر کښې اَچھوت شول۔ خو دې بيا هم د مستقبل څقله تشويش کښې نه وو۔

د کال ۱۹۴۷ء مئ کښې باچا خان او ګاندهي د تقسيم په لړ کښې د کانګريس د ورکنګ کميټۍ سره خبرو اترو د پارهٔ دارالحکومت ډيې ته راغلې وُو ګاندهي دَ وائسرائې سره ګوخو وارهٔ په دې غرض ليدل کړي وُو چې وائسرائې په دې مائله کړي چې د هندوستان د تقسيمولو کار پرېږدي. ماؤنټ بېټن دهٔ ته جواب

بې وسه یم وې چې قائد اعظم محمد علی جناح او
مسلم لیګ د تقسیم نه کم په هیڅ څیز راضي نه دیډ
په ې متې ګانده‌ي د انتها پسندو هندوانو د طبیعت
خلاف د جناح کور ته ورغې دواړو مشرانو دوستانه
ماحول کښې خبرې وکړې خو دواړه مشران د هندوستان
د مستقبل په بابله جوړ نه شول. ګانده‌ي په یو غمګین
او مستحکم آواز کښې ووې "چې زه خو د تقسیم سوچ
هم نه شم زغملې"
د هندوستان تقسیم د هندوانو او مسلمانانو دواړو
د پاره غلط وه او خو پوښې چې هغه دا غلط او
بې جوازه ګنړلو هغه پوړې د هندوستان تقسیم د هغه
خوښیدلې نشو.
ګانده‌ي د عبادت یوه غونډه کښې د هغه کسانو
په جواب کښې چا چې د محمد علی جناح کور ته په
تلو بد منلي وو اووې چې څه اشول که زه د هغه
کور ته ورغلي مولي ملګري هندوستانیان بو- ده دا

پاکلان شوي وُو- ولې نهٔ دي. سره د گیتا په عظمت کښې څه فرق را نغلو- دهٔ ووې چې د یو مذهبي کتاب په دې وجه نه لوستل چې د هغې د پیروکارو نه ستاسو نفرت دې' دا د یو صحي مذهب نفي ده-داروېه د هندو اِزم حفاظت نه کوي- دا ېې تباه کوي.

د گاندهي ضیره غمجنه وه- دا د کرمې یوه اُبدده ودځ وه- د قائد اعظم محمد علی جناح سره د دهٔ د خبرو څه نتیجه را برسیره نه شوه او دې مایوسه شوې وُو ده خپلې سترگې بند کړې او د دهٔ شوندې خوزیدې- ده یو مضمون آواز کښې ووې" چې یا خُدا ربه زهٔ خپل هر یو کار هله شوروع کوُوم چې تا یاد کړم" دا د گاندهي د دُعا رومبنی کربنه وه او دا به د هرې ودځ وئیله او دا د قرآن وینا ده-

ته رحیم او کریم او مهربانه یې.

تا دا کائنات پیدا کړي دي-

ته مالک او آقا یې

باچا خان د ګاندهي میلمه وو. نادوغه وُو او تبې نیولې وُو خو ده څه علاج کول هم نه غوښتل ګاندهي او باچا خان دواړه یو شان ضدیان وُو ده ته ځنه هندوانو ملګرو ووې چې دې کار مکوه، دګ هغوی ته ووې چې لږه موده پس به مونږ پښتانه هندوستان کښې غیر ملکیان بللې شو. زمونږ د پنځویشتو کالو ملګرتیا او د آزادۍ د پاره شریک جد وجهد به د تاریخ یوه برخه شي دې پاکستان کښې دخپل مستقبل په بابله فکرمند وو.

په بله ورځ ګاندهي د نوي دلي نه کلکتې ته روانیدونکي وُو. هیڅ چا ته دا نه وه معلومه چې دَ آزادۍ دا دواړه نوریالی به بیا کله د یو بل سره ویني د دوی دواړو شخصیتونو ترمینځه تعلقات دا حقیقت په ګوته کوي چې باچا خان د ګاندهي جي د شخصیت نه متأثره وُو او دَ دوی ترمینځه یوه ذاتي رشته جوړه

بدمرغه خبره وکړي ګاندهي خپلې وريرې ته ووي
چي: باچا خان يو رښتونی فقير دی. آزادي به راشي
خو دا بايد پښتون به د خپلې آزادۍ نه محرومه نشي
داکه هر محرومړه د مايوسۍ خبره ده ولې باچا خان د
الله سړی دی.

په بله ورځ ګاندهي په ګاډي کښې کلکتې ته روان
شو باچا خان ده سره سټيشن ته ورغلو. د آزادۍ دا
دواړه خپکيالي چي يو وخت يوځای يو بل ته مخامخ ولاړ
وو او دواړه خاموشه وو. هندو مهاتما او پښتون
فقير چي د فرنګي د واک او اختيار نه آزادي
مونډلو د پاره د هيڅ قسم قربانۍ او جدوجهد نه
مخ وانه ړولو، نن او هم دا وخت د يو بل نه
په ژوندون د هميشه د پاره جدا کيدونکي وو.

دا دواړه ننګيالي په سټيشن ولې خاموشه ولاړ دي؟
ځکه چي د دوی پيژندګلي دومره زړه ده او دا

خپله هم دا پته نشته چې بیا به کله ملاقات کیدې
شي ـ دا دواړه خدائي خدمتګاران وُو، د الله تعالیٰ
خدمتګاران وُو. دوی به خپل خدمت جاري ساتي
او دا فیصله به الله کوي چې دوی به خپل خدمت
په کوم ډول او کوم تشکل کښې جاري ساتي.

ګاډې د انجن په لوګو کښې پټ د سټیشن نه
روان شو. باچا خان په سټیشن ولاړ پاتې شو او دَ
ګانډهي ګاډې دو دو د نظر د حده اُوتو ـ دَ باچا
خان په مخ سکون وُو. دَ ډېر ولاړندې ځان دَ اَللّٰه
تعالیٰ مرضۍ ته سپارلې وو او ځکه ده کښې د صدمو
او ناکامو او دَ ډغرو خوړلو او ډغرو ورکولو
د زغم او برداشت ډېر زيات قوّت وُو ـ دهٔ
ټول عمر کښې چرې هم دَ آرام کولو ضرورت نه
وُو محسوس کړې او نه به دې چرې نه بیا د آرام
ضرورت محسوس کړي. دَ دهٔ د یارهٔ ژوند دَ یو

د پاره دوه ګهنټې پس یو ګاډې روانیدونکې ؤو - دا د خیل اُولس سره د لیدو وخت ؤو.

دې د ستېشن په ګنړه ګونړه کښې ننګنګ ته ورغې - دَ دهٔ د کور شاته باغ کښې د خورمانو بونو ګلونه سپړ دي ؤو - دَ دې نه وړاندې چې دا ګلونه مړاوي شي دې په څادر په اُبڼه او پندوکې په لاس خپلې پښتونخوا ته ورګډ شي.

تمّت بالخیر

# د حضرت باچا خان سره دوه نیمې کتنې

غني خټک

**یاد کېرنه** :۔ د حضرت باچا خان سره د پاسني عنوان ترلاندې دا تاریخي مرکه په اوه ورځني "هیواد" اخبار کښې چاپ شوې وه "فرنټیئر پوسټ" کښې هم د دې اوړن لاندې چاپ شوې وه. دا د حضرت باچا خان د مرګ نه اګاهو آخري تفصیلي مرکه وه دې په ۲۰ جنورئ ۱۹۸۸ء کښې په حق اُرسیدو او په دوه ویشتم جنورئ جلال آباد کښې خاورو ته اُسپارلې شو او په دغه دول یې په خپل مرګ د پښتنو تر مېنځه د انګریزانو را ښکلې کرښه د همیشه د پاره د ختو لاندې کړه د مرګ په حقله تاثرات، د حضرت باچا خان د شخصیّت یوه تجزیه او سوال او جواب ورکولې شي.

دا د نهې ورځ او دیرشم دسمبر ۸۷ ؤو۔ چې زۀ د باچا خان د لیدو د پاره محمد نارې ته روان شوم۔ د لیدو نه وړاندې مې عجیبه عجیبه خیالونه مازغو ته راتلل۔ ویره راسره دا وه چې خان عبدالغفار خان به را سره څه خبرې اترې

محمد نارې ه چارسده ـ تخت بهائي روډ باندې د چارسدې نه تقریبًا دولس کلومیټره لرې دې. ټریفک ښه ډیر دې د پېښور نه تلو او راتلو کښې څه تکلیف نشته.

چې په محمد نارې ه کوز شوم او تپوس مې وکړو چې دلته به غفار خان چرته وي؟ نو یو کس ځما په تپوس حیران غوندې شو. او د بل کس نه مې تپوس وکړو چې زمونږ په کلي کښې څوک غفار خان، نشته دې؟ هغه ځما نه تپوس وکړو چې ستا مطلب باچا خان خو نه دې؟ ما اوې چې او هم باچا خان صیب لیدل غوارم. ـ هغوی راته لار نیغه کړه ځما خپل احساس هغه وخت دا دو چې څوک به مې لیدو بڅتور به راته معلومیدو ځکه چې د هغوی سره څنګ په څنګ یو داسې شخصیت د باچا خان په صورت کښې ناست دو. چې د برصغیر په تاریخ جوړیدو کښې یې یو غټ رول دو او دا پته نه لږي چې تاریخ به د دغې شخصیت د نظریاتو [illegible]حقله څه فیصله ورکوي؟ ما چې یو ځل بیا تپوس وکړو، یو کس راته او وئیل چې باچا خان خو د صوابې په دوره باندې دې، خپې ناسو دغه پښتو نه ورتاو

هغوی ټول عمر بې د پښتون د خير ښيګړې د پاره کار وکړو. د پښتون د اتحاد او اتفاق د پاره بې په ځان شپه او ورځ يوه کړه. د پښتون د حق ګټلو د پاره بې د عمر يوه لويه برخه په جيلونو او زولنو کښې تيره کړه، نن هم د هغه په ژبه د پښتنو د اتفاق ترانه ده او په مات کوړه سټه او کمزورې وجود نن هم د پښتنو په کوڅو کښې ګرځي او هغوی ته د خوب ته را ويښ کيدو غږ ورکوي ــــ دا ځان ته د افسوس يو ډک سوال دې چې پښتون د دغې بې غرضه او خدائي خدمتګار په څومره خبره عمل وکړې شو؟

که نن ما د باچا خان سره ملاقات ونکړې نو خدائې خبر چې بيا به داسې موقع کله په لاس راشي؟ ځکه چې دا مې واوريدل چې باچا خان په دوره دې په زړه مې نياره نسوه خو په هغه لور روان شوم او چې څنګه د پېنې په لور ورننوتم، باچا خان مې د لرې نه او پيژند وچې بنه اوچت ناست وو. اګر چې باچا خان اوس د سلو کالو شوې دې خو بيا هم د هغوی نن بدن د عام سړي نه زيات نظر راځي. پلن مخ او پلنه سينه، مخ بې داسې

زۀ چې ورنږدې شوم نه پوهېږم چې هغه کوم يو احساس وو چې ماته ژړا راغله. غالبًا ما دا غو ښتل چې د هغوی سره په دغه وخت ډېر کسان ناست دي يا دا احساس هم کېدې شو چې دا څومره لوئې شخصيت، يو اهم تاريخي وجود په څومره ساده ماحول کښې ناست دې. زۀ حقيقت دا دې چې اوس هم نه پوهېږم چې ځما احساس ژړې غوښتې ولې شو؟ بيا هم چې زۀ ور اورسيدم، باچا خان لاس راکړو. يو کس په دغه وخت کښې د باچا خان سره نږدې د يوې وني په تنې ماتولو لګيا وُو، دوه کسان ورسره نور ناست وو. دا يو صفا ستهره خاموشه او پر سکون ماحول وُو. باچا خان د تخت پوش د پاسه په يوې ساده بړ ستن ناست وُو. د سلېټي رنګ خامتا به ې اچولې ده، په سينه باندې بې توليه پرته ده. يو کټ د تخت پوش څنګ اړخ ته پروت وُو او بل کټ ورسره مخامخ پروت وو، د باچا خان د تخت پوش د سر سره جوخت يو ورکوټې شان مېز پروت وو. چې ور باندې يو دسترخوان پروت وو. که يو نابلده کس دغه ځائې

تحریک نوې مرکز دې او د هغوی د وینا مطابق که څوک د کارکولو د پاره ځان د بې غرضه خدمت د پاره وقف کولې شي، دغه مرکز به ښه جوړ کړې شي. مطلب دا چې اوس دا مرکز عارضي دې.

سحر باچا خان دغه ځائې ته راغې او ما ښام د خان عبدالولي خان کور ته لاړې، هغوی به دلته شپه هم تېر وله خو د ځامنو په خواستونو او د ډاکټرانو د هدایت په رڼا کښې اوس هلته شپه ځکه نه کوي چې د یخنۍ په وجه دغه کوټه ډېره یخه وي او د باچاخان د پاره په دې عمر کښې زیاته یخنۍ تکلیف پیدا کولې شي.

د محمد نارې سره جوخت مخامخ په پښتو کښې یو څو بچه کودونه دي. دا کودونه د هغه خلکو دي څوک چې په دې پښتو کښې کار کوي، دغه کچه کورونو مخې ته یوه کچه کوټه ده چې ورکښې دوه یا درې کټه ځائیدې شي او هم دغې کوټې مخې ته د باچا خان تاریخي شخصیت لیدې شي د دغه ځائې نه کښې چاپېره هواره او مړه پټه ټکه ښنه

په نشنې سره ناست ؤو. چې ما ترنه تپوس وکړو چې تاسو باندې د پښتون د عمل په وجه چرې مايوسي خو نه ده راغلې باچا خان راته اووئيل چې زهٔ مايوسه کيږم نه، مايوسي په هغه کسانو باندې راځي څوک چې د ځان د پاره کار کوي. څوک چې د خپل غرض او خپل مطلب د پاره کار کوي زهٔ خو د پښتون خدمت د خدائي خدمتګار په حيث کوم زهٔ به ولې مايوسه کيږم بيا هم د خبرو په دوران کښې په دغه ددې موقع باچا خان د پښتنو د عمل د هغوی په خوئې خصلت او بې اتفاقۍ باندې د خفګان اظهار اوکړو. او دئيل بې چې پښتون يو ناشکره قام دې هغوی ووئيل چې وګوره د پښتون څنګه حال شو؟ په افغانستان کښې وربانډې سيلاب راغې او د افغانيانو کور ويران شو، دلته په کراچۍ کښې پښتون ته ګوره څه ورسره کيږي؟ دا ټولې د عذاب او د الله د قهر نښانې دي. کوم يو قام چې د الله د قانون احترام نه کوي او ځان نه پېژني، د هغوی سره هم داسې کار ونه کيږي د باچا خان د خبرو انرو نه داسې ښکاريده لکه چې هغوئ ته قرآن په ياد وي او په تفسير هم پوهه وي. د خبرو انرو

به د یو استاد په چول بیا په خبرو شو او ځواب به یې مکمل کړو. یو ځل راته وائی چې ښکاري داسې ځکه یو پوښتنه مسلم لیکي یې او پوهه ځان د نا پوهه کړې وي، په بل ځل راته وائی چې هسې بې مطلبه سوالونه کوي، سوالونه کول د زړه کړي دي او په بله موقع یې راته وویل چې خبره وي نه اورې ولې کوڼ شوې څه؟ چې ما ورته وویل چې ستاسو کتاب "زړه او ځاجدو جهد" ما لوستلی دی نو باچا خان راته وائی چې نه دی دې لوستې که تا ځما کتاب لوستلی وې داسې سوالونه به دې نه کول.

چې زمونږ په خبرو کښې به خاموشي راغله باچا خان به کله کله اخوا دېخوا لرې لرې کتل او داسې به ښکاریده لکه په ناسته ناسته د ښېرو د نظارې نه خوند اخلي او کله کله به یې اوچت په آسمان کښې کتل د باچاخان غوږونه او سترګې په صحې حالت کښې دي. په سترګو کښې یې یو نیغ بیرق دی، نیغ ورته سړي نه شي کتې آوازې یې حدونه او صفا دي هسې د باچا خان خپل عادت دی چې سړي ته نیغ نه ګوري. غالبًا دا د هغوئی د علم نشه د

ډېر کم خلق کولې شي. باچا خان د شلمې صدۍ د پښتنو هغه مشر دې چې د هغوۍ د شخص د پاره هغه هر څنګه تکليف په ځان غوره کړو او تن وخت پورې په آرام نه دې ناست ماته وائې چې کوره زه په ټول بدن کښې په درد اخته يم، کله څه بيمار يم او کله را باندې څه بيمارې حمله وکړې، پښتو مې کار پرې ايښې دې خو چې کله زه په دوره روان شم ځما ټول تکليفونه روغ جوړ تسي او جک جوړ سړې شم. د حضرت باچا خان د دغې خبرې نه ځانې ښکارې لکه هغوۀ د پښتنو خدمت يو عبادت ګڼړې. سره د باچا خان سوره دوه نيمې ګهنټې ناست وُوم دې دوران کښې به کله هغوۀ پښې اوږدې کړې او کله به يې را غونډې کړې ډېره يې وهلې وه، باقي تن بدن يې ښه ښکاريده او سړې تر ډېره اندازه ګولې شي چې ژوند يې ډېر دې او په حوصله ځوان دې. زمونږ د خبرو په دوران کښې د باچا خان يو ځلمې نمسې راغلو، هغه ډېره ډېر په طبيعت خبرې کولې. نمسي ورته لاس ورکړو تپوس يې تر ډېره وکړو چې نائي ورته صبا څه وخت را وليږم، د

چې نيکه بابا دا څنګه چل دې چې زه دلته راشم کومې
ته مې زړه وشي باچا خان ورته وائي، چې دا ځما دکورې
شامت راغلې دې. وخوره، خپله هم وخوره او دې ميلمه
باندې رماته اشاره هم وخوره.

زه په دا پوهه نشوم چې باچاخان خپل ويښته کومنځ
کوي او که نه، هسې کله به ښې په ديښتو لاس اوهلو
او په شا به ېې لکه د ځلمو حوار کړل. چې د لاس
پلنې پلنې پنجې به ېې په هوا کښې پرانستې نو د لاس
لکيرې به ېې صفا صفا ښکاريدې. ما چې ترنه تپوس
تپوس اوکړو، راته وائي چې ځا په عمر کښې ستا څه
مطلب دې؟ چې ما په اسرار سره تپوس وکړو، باچاخان
راته وائي چې پنځه کم سل کاله عمر به مې وي. کيدې
شي دوه کم سل کاله وي او دا هم کيدې شي چې سل
کاله مې پوره کړي وي. د توکل معامله ده، په هغه وخت
کښې به عمر نه شو ليکلې ... وخت به خلق نالوستي
وو، ليک چا کولې شو؟ چې په اخر کښې مې ترنه آټوګراف
وغوښتو، باچاخان سکوت انکار وکړو. او ويل ېې چې

زهٔ چې د باچاخان صیب سره کیناستم، هغه وخت پاڅکم دوه بجې وې چې را پاڅیدم څلور یا پاؤ باندې څلور بجې د ماز دیګر شوې وې. چې څومره وخت تېر یدو د هغوی د شخصیت اثر په ما زیاتیدو. ځما نه هغوی هیڅ تپوس ونکړو چې زهٔ څوک یم او د کوم ځایٔ نه راغلې یم. زهٔ د هغوی په تخت پوش د هغوی نېږدې ته کیناستم، یوه شیبه غلې یم، باچاخان صیب په سوچ او فکر کښې ډوب وو ولې په مخ یې سکون نیهٔ څرګند وو، زوره خاموشي مې ماته کړه او د خبرو پیل مې وکړو.

زهٔ چې ستاسو لیدو له پاره راغلې یم. د ډیرې مودې راسې مې دا اراده وه چې ستاسو سره ملاقات وکړم؟

باچاخان ځما په دې خبره ماته مخامخ شو او راته یې وئیل چې ځما د لیدو له پاره ولې راغلې؟ ما کښې تا څه لیدلي دي؟ زهٔ خو څه ملا نه یم. خلک ملایانو ته ځي، زهٔ څه تسکواتي نه غوارم، او نه زیارت یم. بل داسې ځایٔ نه دی چې ته ورغلې وې؟

تپوس - ځما هم دا خیال دې چې تاسو ملا نه یې خو ستاسو سیاسي شخصیت دومره دروند او غوپ دې، د برصغیر

دې چې تاسو د پښتون مشر او د پښتون د بېدارۍ د
پاره دومره کار کړې دې او دومره زیاتې قربانۍ مو
ورکړې دي چې که څوک څه بدل غواړي نو هم ستاسو
بدل ضروري دی ؟

حضرت باچا خان:۔ دا ستاسو غلط خیال دی چې زهٔ
د پښتنو مشر یم۔ ما چرې د ځان د پاره د مشرۍ دعوی
نه ده کړې، زهٔ د پښتنو بابا هم نه یم۔ زهٔ خدائی
خدمتګار یم۔ د خدائی د پاره د پښتنو خدمت کوم په
هغوی مې هیڅ احسان نشته او نه د هغوی نه د خپل
خدمت په بدل کښې څهٔ غواړم۔ ما ته ګوره په دې عمر
کښې چې زهٔ مات ګوډ یم، ښپې مې کار نه کوی او
کله څه بیمار یم او کله څهٔ خو بیا هم زهٔ د پښتنو
په کوڅو کښې د هغوی په خدمت کښې ګرځم۔ دَ الله
شان ته ګوره چې کله زهٔ په دوره روان شم نو ځیک جوړ
شم او ټول بیمارۍ روغې جوړې شي۔

تیپوسے: تاسو ولې داسې وایئ چې " زهٔ د پښتنو
مشر نهٔ یم" ستاسو دَ دې خبرې نه خو داسې ښکاري

د خپل غرض او فائدې د پاره کار کوي او چې کله يې
خپل غرض سرته ونه رسي مايوسي دربانديې راشي
زه نو چې چرته هم ځم، چرته هډو چې نه خورم
چای نه څښم. د خدائې د پاره کرځم. هسې پښتون
ناشکره قام دی. دَ چا ښيګړه نه مني، تربوروليّ
کوي، دښمنی کوي، په رواجونو بانديې مال دولت
خوړ کوي، هرڅه کوي نو په اتفاق کښې نه اوځکه نو
وربانديې قسما قسم تکليفونه راغلي دي. چې کله يې ځان
وپيژندو دنيا به يې ومني. ګوره په افغانستان سيلاب
راغي او نو د افغانستان خلق د سيلاب د چپولاندې
دي. کواچه کښې ګوره په پښتون څه وشول؟ ځان
نه پيژني، نا شکره قام دي.

تپوس:- اوکه ځان وپيژني؟

حضرت باچاخان:- بيا بهادر قام دي، په دنيا کښې دَ
هيچا نه په څه کم نه دي. نو ګوره امريکه چرته ورسيده
جاپان څومره په ترقۍ دي. پښتون د امريکې يا جاپاني
نه په څه کم نه دي رچې باچاخان دا خبرې کولې ځما

تپوس:۔ ستاسو په دې حقله څهٔ وئیل غواړې چې د پښتون خپل پریس، اخبار یا رساله نشته او په دا وجه دوی سخت په تاوان کښې دي۔ دَ خپل پرلیس دَ نشوالي په وجه پښتون ته د مجرم په حیث کتلې شي؟

حضرت باچاخان:۔ زهٔ چې د افغانستان نه راغلم، ځما دا خیال وو چې زهٔ د یو ښه معیاري د یورپ د معیاریو اخبار وباسم۔ ما د ډیکلیریشن د پاره درخواست ورکړو ځما درخواست ځکه نا منظور شو چې حکومت نه غواړي چې زمونږ خپل ښه اخبار وي۔ ما ته وائي چې د اخبار نوم به "پښتون" نه وي۔

تپوس:۔ چې د اخبار ضرورت دې په "پښتون" باندې نعد ولې؟

حضرت باچاخان:۔ آخر که نوم پښتون وي نو څه حرج دې خبره دا ده چې پنجاب مونږ غلامان ساتل غواړي طاقت ټول د اسلام آباد سره دې۔ کوره کنه د صوبې د حکومت دومره طاقت هم نشته چې مونږ ته د اخبار اجازه راکړي هسې یوه خبره بله هم ده او هغه دا چې پښتون د اخبار

هلته نشته مثلاً تاسو وګورئ "شهباز" اخبار به پنځوا خلقو لوستو او اوس ورته ګوري هم نه ؟

حضرت باچاخان:۔ او د شهباز معيار خو د پنجاب او د اُردو د اخبارونو نه هم ښکته پريوتي دي.

تپوس:۔ د يو ښه او مؤثر پرليس نه بغير د قام په فکو کښي يو والي نشي راتلي ؟

حضرت باچاخان:۔ که څوک داسي وي چي د قام د پاره کارکول غواړي، د ځان د پاره اخبار نه چلوي، غريب دي او د خدمت جذبه لري او اخبار، يو ښه اخبار چلولي شي نو د هغه مدد نه تيار يم، پيسي ورکولو ته تيار يم څوک چي وي ځان د خدمت د پاره وقف کولي شي راوړاندي دِ شي.

تپوس:۔ تاسو به د اخبار د پاره فنډ ورکړئ ؟

حضرت باچاخان:۔ او.

تپوس:۔ څنه خلق دا خيال کوي چي ستاسو د عدم تشدد فلسفي پښتنو ته نقصان ورکړو ؟

حضرت باچاخان:۔ چي څوک دا خيال کوي هغوئ به ئي کوي

عدم تشدد په سړي کښې د مزاحمت قوت زياتوي، سړي ته حوصله ورکوي، په سړي کښې استقلال زياتوي او اخلاقي جرأت پيدا کوي.

تپوس:- جي! تاسو خپل کتاب کښې هم په دې خفله ذکر کړې دې.

حضرت باچاخان:- که تاسو ځما کتاب لوستې وُو- د دې تپوس ضرورت به نه وو، تاسو ځما کتاب نه دې لوستې، په توکل خبرې کوې.

تپوس:- حقيقت دا دې چې ما ستاسو کتاب "زَهٔ او زما جد وجهد" لوستې دې، ستاسو په کتاب کښې ډير څه موند ې شي، د لوستو ورکښې ډير څه دي خو اوس ورباندې پابندي دکه؟

حضرت باچا خان:- ما دا کتاب د پښتنو د پارهٔ ليکلې وو، ما د ذاتي فائدې د پارهٔ نه دې ليکلې- دې کتاب کښې د ليکلو نه ډير څه پاتې شوي دي- ما دا يو سوشل کتاب ليکلې دې- د دې مقصد د پارهٔ چې پښتنو کښې سوشل نوې خصلت پيدا شي خو لکه څنګه چې ما وړاندې د ومېل پښتنو په کتاب او اخبار پيسه نه ورکوي- او ګورهٔ ځما په کتاب کښې څه داسې مواد دې چې

شي۔ څو پښتون د لوستو کار نه کوي۔

تپوس:۔ د پښتون د ټولي ګوند دا خیال دی چې د اسلام نوم د استحصال د پاره په کار را وستي شي؟

حضرت باچا خان:۔ دکوم اسلام خبره؟ کړي، اسلام څو کاله ملایانو د لاسه ختم شو. دې خبرې ته سناسو پام نه دې چې په اسلامي ملک کښې زور نه وي، جبر نه وي، زیاتي نه وي۔ بې انصافي نه وي دلته څو قسما قسم اخلاقي مرضونه عام شوي دي. یو ځل ضیاء الحق ما ته لیدو ته راغلی وو د اسلام زندګا باد ناري مې غوږونو ته راغلې ما ترې نه تپوس وکړو چې یا هلکه دا بیا دې د اسلام په نوم څه لوبه جوړه کړې ده؟ اسلام خو دلته د هر چا د خپلې خوښې خیږ جوړه شوې دې. دې کښې شک نشته چې د اسلام په نوم، پښتون د اسلام نه لرې کړې شو چې د اسلام نه لرې شو، قومیت یې خراب شو۔

تپوس:۔ په کراچۍ کښې په پښتون باندې بدې ورځې راغلي دي، ډیر هم خوري او بدنام هم شول۔ ستاسو په دې حقله څه خیال دې؟

حضرت باچا خان:۔ په دې حقله ځما د اخبار بیانو نه دلوله

حضرت باچاخان:۔ د تشکل نه سم هوښیار سړي ښکاري ، خو ذهن دې د مسلم لیګ دی۔ دا سوال نا پوهه خلق را پورته کوي۔ چې کله د برصغیر د تقسیم فارمولا منظوره شوه، ما ته محسوسه شوه چې هندو ما ته دوکه راکړه، لارډ ماؤنټ بېټن د ریفرنډم تجویز وړاندې کړو، ما ورته ووئیل چې برصغیر پریکوې شي نو زمونږ د پاره هډو د خوښې ضرورت نشته ولې چې د تقسیم په صورت کښې مونږ د بهارت سره اوسیدې نشو او کنه خو بیا د ریفرنډم شوق لرې او شرط پوره کول غواړې نو بیا ریفرنډم په دې سوال په کار دی چې د صوبې خلق د پاکستان سره اوسیدل غواړي او که نه پښتونستان غواړې دا ریفرنډم په مونږ را وتپلې شو هډو ضرورت یې نه وو۔ او هم دا دجه وه چې ما د ریفرنډم مخالفت وکړو۔ او چې د کله نه پاکستان جوړ شو، وراني چې هر څه کیږي د باچاخان په حساب کتاب کښې اچولې شي۔

تپوس:۔ د موجوده سیاسي حالت په حقله ستاسو څه خیال دے ؟

حضرت باچاخان:۔ د جناح پاکستان وران شوې دې په پاتې

کښې به نورې صوبې شریکې ساتلې شي او دویم دا چې زمونږ په صوبه کښې څه دي دا به زمونږ وي، پنجاب به دربانديې ډاکه نه اچوي۔ ګوره زمونږه صوبه یوه مالداره صوبه ده خو د مالدارۍ فائدې پنجاب ته رسي۔ ماته د کنفیډریشن واله، حفیظ پیرزاده او ممتاز بهټو راغلي وو، هغوی ځما سره خبرې اترې وکړې، ما هغوی ته اووئیل چې په وخت به تاسو ته څوک حکومت درکړي۔ عجیب هم دوئ ګټلي دو هغه ته چا حکومت ورکړو؟ دلته خو یوه صوبه پنجاب حکومت کوي۔

تپوس :- تاسو د پښتون د اتفاق او یو والي د پاره ډیر زیات کار کړېدې، ستاسو څه خیال دې چې ستاسو د مرګ نه وروستو به د پښتون څهٔ حال وي؟

حضرت باچاخان :- دا فکر ځما کار نه دې، د مستقبل پِفکله فکر کول ستاسو کار دې۔ یاد لرې چې هر یو کار چې په اتفاق وي، برکت ناک وي خو ماته خو داسې ښکاري لکه پښتون باندې د خدائې قهر وي ځکه ورباندې تکلیفونه راغلي دي چې کوم قام بې عمله او بې کرداره شي، الله وربانديې د تکلیف شپې

حضرت بلچاخان:۔ که زهٔ شوم یم، سخي څه ته وائي؟ ماته
په اوس د سخي تعریف کوه۔

تپوس:۔ زهٔ نه وایم، خلق وائي، د یو بل نه اوریدلي
خبره ده؟

حضرت باچاخان:۔ تر څو چې تا د سخي تعریف نه دي کړې
ځما سره به خبره نه کوې۔

تپوس:۔ سخي داسې کس ته وائي چې دَ غریبانو مدد کوي
د هغوي سره لاس او اخلاص کوي او که څوک ورته
سوال وکړي، مایوسه کوي بې نه؟ دې ته سخي وائي؟

حضرت بلچاخان:۔ که د سخي تعریف دغه وي، زهٔ سخي یم۔

تپوس:۔ او جې تا سو د پښتنو څه خدمت کړې دې؟

حضرت بلچاخان:۔ د خدمت خبره نه کوم، د ورکړې خبره
کوم۔ زه په یو لاس ورکړه درکوم او بل لاس ته بې
پته نه وي او خلق چې څه ورکوي وړاندې د تصویر
ویستو بند وبست وکړي د ځان تشهیر کوي۔ یره خبره یاده
لره چې یو خوددار او غیرتي انسان هیڅ چا ته لاس نه نیسي
او که څوک څهٔ ورکوي، نه بې اخلي داسې ما ډیر کسان

دوه او ستا په خولې څه چل شوي وو ؟

پوښتنه:- تاسو به ماته اتوګراف راکړئ ؟

حضرت باچاخان:- اتوګراف لیډران ورکوي سیاست کاران ورکوي زه سیاست کار نه یم او نه لیډر او نه مشر یم. زه خدائي خدمتګار یم. ما څرنګه چا ته اتوګراف نه دی ورکړی.

څلور بجې شوي وې، وخت داسې تیر شوی وو لکه یو ساعت، زه راپاځیدم د حضرت باچاخان نه مې اجازت واخستو او هلته موجود دوه کسانو ته مې لاس ورکړو او روان شوم. د ماز دیګر سیوري راخوریدونکي وې، چې لږ لاړم په شا مې وکتل بې تاجه بادشاه حضرت باچاخان په تخت پوش ناست د آسمان په لوري یې اوچت کتل او په دې سوچ کښې روان شوم چې که باچاخان یو لوئي انسان نه دی نو څوک لوئي انسان کیدې شي ؟


رفیع الدین لودین کتابتون
کتاب پرلیسي شمیره

# منته او دُعا

زهٔ دَ دوي الله دېره منته کوم چې ما ته يې د حضرت باچا خان د خدمت کولو توفيق راکړو زهٔ لاس په دعا يم چې زهٔ داسې نور خدمت اکړې شم. دا مې هم د زړهٔ دعا ده چې پښتنو شاعرانو او ليکوالو ته دِ الله تعالیٰ توفيق ورکړي چې د پښتو ژبې، ادب او د خپلو قامي مشرانو خدمت اُکړي شي او دا زړهٔ او درنه ژبه ترقيامته پورې آباده او شادابه پاتې شي.

زهٔ د خپلو ماشومانو او خپل ټبر هم منته کوم چې ځما د ليک لوست وخت يې هميشه ځما ذاتي وخت ګڼلې دې او ځما ډاډګيرنه يې کړې ده.

په خاص ډول دَ دې کتاب د کاتب شمس العارفين دَ زړهٔ د اخلاصه منته چې يو ښه ملګرې او دوست هم ثابت شو او دې لړ کښې يې ځما سره ټيک

## پېژندګلي

د پښتو ادب اؤ پښتون قوميت په هغه ختذمتګارو کښې چې د هرې طمعې اؤ لالچ نه بغير د پښتو خذمت کوی' د عبدالغنی خان ختک نوم لکه د يو ځلانده ستوری برقيږی۔ که زه دا خبره اوکړم چې دۀ خپل ژوند د پښتو ادب' تاريخ اؤ ثقافت د ښکاره کولو د پاره وقف کړے دے نو بې ځايه به نه وی۔ د پښتو تاريخ ئې د دلچسپۍ خصوصی ميدان دے۔

په دے لړ کښې ئې په پښتو' اردو اؤ انګريزی ژبه کښې بے شميره مضمونونه اؤ ليکونه په مختلفو مجلو اؤ اخبارونو کښې خواره شوے دی۔ څه موده وړاندې په کوټه کښې د پښتو عالمی کانفرنس له اړخه د دۀ د خذمتونو د اعتراف په توګه دۀ ته ايوارډ هم ورکړے شوے دے۔

د ضلع نوښار د سپين خاک په خاؤره زيږيدونکے دغه سور سپين ځوان نن صبا د مارګلې په لمن کښې د اسلام آباد په ښار کښې د سرکاری وظيفې سر ته رسؤلو سره سره د پښتو اؤ پښتنو په خذمت کښې بوخت دے۔ دۀ د دغه خذمت شورو په اسلام آباد کښې د جوړيدونکی "پښتون وررولی" نومې تنظيم نه اوکړه۔ روستو دغلته د ادبی ملګرو يو تنظيم "پښتو ادبی سوسائيټی" چې کله جوړيدله نو دے ئې په بنيادی تيګه ايښودونکو کښې شامل شو اؤ پړله پسې څو کاله د دغه ټولنې بلامقابله چيئرمين اوټاکلے شو۔